# په اسلام کښې د انسان حقوق


مولف: دکتور علي عبدالواحد وافي

ژباړونکی:

محمدشاه ارشاد

35

# په اسلام کښې دانسان حقوق

مولف : دکتور علی عبدالواحد وافی




ژباړونکی :

محمدشاه «ارشاد»



# فهرست

# مقدمه

داسلام په ښوونځې کښې دیمو کراسی، دحقوقو تامین اودعدالت تعیمم او بسط هغه درسونه‌دی چه‌نړی دحیرت گوته ور ته په غاښ نیولی ده .

گورو چه په اسلام کښې داسې شخصیتونو او لارښودونکو ظهور کړی اومنځ‌ته راغلی چه د ددوی‌دژوند سویه اوله بشری‌غوښتنو څخه ددوی تمتع او انتفاع له عامو وکړوسره یوشان اوبرابره وه‌اواه هره‌ځه‌هرڅوك له خپلوټولوحقوقو څخه مستفید ؤ ــ که‌کومه‌گټه به لاس ته ورغله دوروڼو په څیر به‌ئی‌سره‌ویشله اوفردی اواجتماعی آزادی‌ئی‌تامین وه.

هغه‌وخت‌چه حضرت‌عمرفاروق(رض)وینا کوله‌چه«ای‌خلکو! که‌ماستاسو په کار کښې‌بې‌لاری‌وکړه‌نوومې‌پوهوی‌اوسیخی‌لارې‌ته‌مې‌سیخ کړی‌ء»یوسړی‌له‌ځایه‌ولاړشو اوویې‌ویل که‌ته‌له‌لارې‌واوښتې په‌توره به دې لارې ته سم کړو»حضرت‌فاروق‌ض په‌داسې حال کښې‌چه‌خدای(ج) ته‌یې شکر کاؤ وویل «خوش یم چه‌اوس‌هم داسې خلك میندل کیږی‌چه‌دخطاب ځوی(عمر) په‌توره‌نیغې‌لارې ته‌سیخوی »

دغه‌کتاب‌یوداډول کتاب‌دی‌چه‌په‌اسلام کښې‌حق‌اوعدالت‌ښیی‌اوداسلام‌دحقوقی ښو نځی یوه نمونه ده‌ــ‌هرمسلمان‌چه‌له‌دغه ښوونځی‌څخه دحق‌اوراستی‌درس‌زده کړی هغه بریالی‌دی .

محترم‌فاضلی‌ښاغلی‌ارشادته تبریك وایو چه دداسې یوه کتاب ترجمې ته ور د مخه شوی دی چه دحقیقت‌له‌مخې هرمسلمان‌حق‌اوحق‌خواهی‌اودآزاد ی روح ته متوجه کوی .

دداسې کتابو نو خپرونه ټولنه منږره کوی .

دغه رسا له په پر له پسی تو گه د هیواد په ورځ پا ڼه کښی خپره شوه او دادی او س دیوه جلا کتاب په حیث هم چاپ او خپره شوله .

د کور نیو خپر و نو دلوی مدیریت د جوایز و څانگه ځان بر یالی بولی چه دا ډول کتا بو نه کتو نکو ته وړ اندې کوی .

هیله ده چه گردښاغلی او ژباړو نکی خورا ښه او غوره کتابو نه په ملی ژبه ( پښتو ) تالیف او ترجمه کړی چه په ار ته او و سیعه پیمانه علم او پو هه خپره شی .

(ما یــل هروی )

# د ژباړونکي مقدمه

ویاړم چه په دې روستیو وختو کښې مې توفیق وموند چه د مصر د یوه نامتو لیکوال ښاغلي دکتور علي عبدالواحد وافي ( په اسلام کښې د انسان حقوق ) په نامه کتاب په پښتو ترجمه او خپلو پښتنو وروڼو ته وړاندې کړم .

په دغه کتاب کښې د قرآني دلایلو په استناد په انساني ارزښت او انساني کرامت داسې رڼا اچول شوې ده چه که هر څوک یې ولولي او انصاف ولري اعتراف به وکړي چه د کوم حریت، مساوات او انساني کرامت اساسات چه د اسلام مقدس دین ایښي او د اسلام په لمړ نیو پیړیو کښې عملاً تطبیق شوې دی او سنی دیموکراسي گانې هغې درجې ته رسیدلې نه دی او نه به ورسیږي .

زه په دې عقیده یم چه که څوک غواړي چه د اسلام په عظمت او د هغه د تعلیماتو په لوړ والي پوه شي نو باید خپله قرآن او د لمړي پیړۍ مسلمانان په نظر کښې و نیسي نه ځیني او سني مسلمانان او نه هغه چه او سني ځیني مسلمانان یې کوي ځکه چه اسلام د قرآن په تعلیم د عدالت، حریت، مساوات، ورور گلوي، ایثار. فداکارۍ، مینې، محبت، لوروني او پېرزوینې په اساساتو ولاړ دی او هدف یې د انساني کرامت او انساني ارزښت صیانت دی او بس .

د دې مدعی د اثبات د پاره یو وار دغه کتاب ولولیء او بیا خپله قضاوت وکړئ :

ضمناً د لته دا تذکرهم مناسب گڼم چه د دغه کتاب په ترجمه کښې ما د تحت اللفظي ترجمې لاره تعقیب کړې نه ده بلکه معنی مې را اخیستې او د پښتو ژبې په قالب کښې مې اچولې ده شاید په دغه کار مې څوک پړ نه کاندي ځکه چه تحت اللفظي ترجمه کول د ترجمې سلاست له منځه وړي والسلام .

(محمدشاه ارشاد ) .

بسم الله الرحمن الرحيم

## د مؤلف مقدمه

د انسان د عامو حقوقو د مهمه برخه دوه اساسي حقونه ګڼل کيږي: يو مساوات او بل حريت. اوسني ديموکراسي ملتونه دا دعوی کوي چه انساني عالم د دغو دوو اساسي اصلونو او نورو انساني حقوقو په تثبيت او ترويج کښې د هغوی د مساعيو مرهون او مديون ګڼل کيږي او هر څوك په دغه لار کښې د سبقيت د فضيلت دعوی کوي. مثلا د انګريز ملت په دغه ميدان کښې ځان له نورو ملتو څخه وړاندې بولي او فرانسويان د دغو اصولو ترويج د خپل لوی انقلاب محصول ګڼي او نور ملتونه بيا په دغه فضيلت نه انګريزانو ته قايل دي او نه فرانسويانو ته بلکه هغه د خپلو ملتو د لياقت او کفايت محصول او مولود ګڼي خو که حق ته تن کيښو د شي دا به هر څوك ومني چه اسلام لومړنی دين ؤ چه د انساني حقوقو خاصه مبادي يې په ډير ښه شان په کامل صورت، په پراخه اندازه او په معقول او عادلانه طور طرح او تثبيت کړل او له هغه وروسته بيا اسلامي ملتونه هم د حضرت محمد (ص) په زمانه کښې او هم د خلفاء راشدينو په دوره کښې د دغه اصل سابقه دارترين عاملين ؤ. او دا هم بايد ومنله شي چه اوسني ديموکراسي ګانې په دغه لار کښې اختلافات سره لري او اسلامي نظام ته نشي رسيدی.

زمونږ د دې اد عا اثبات د پاره دا کافي ده چه را تلونکی بحثونه په دقت سره تر مطالعې لاندې ونيسو او د انسان د اساسي حقوقو په باره کښې چه مساوات او حريت دی د اسلام موقف معلوم کړو.

علي – عبدالواحد وافي

# لمړی فصل

## په اسلام کښې مساوات

د مساوات مهم مظاهر په درې صورتو کښې څرګندېږي اول په انساني مشترك قیمت او ارزښت کښې مساوات، دوهم د قانون دوړاندې په سیاسي او مدني عمومي حقوقو کښې مساوات او دریم په اقتصادي شئوناتو کښې مساوات .

نو اوس به مونږ دغو درې واړو انواعو په شاو خوا کښې خبرې وکړو او د هریوه په باره کښې به جلاجلا د اسلام موقف څرګند کړو او بیا به د دغه فصل په پای کښې څلورمه فقره راوړو چه په دغو شئوناتو کښې د نړاو ښځې ترمنځ د مساوات او برابرۍ ثبوت ورکوي او په ښځو باندې د اسلام د خاصې لورونې ممثل ګڼل کېږي.

(۱) په انساني مشترك ارزښت کښې مساوات.

د اسلام مقدس دین دا ثبوت ته رسولې او منلې ده چه ټول انسانان په دغه باره کښې داسې سره برابر او مساوي دي لکه د ږمو نځې غاښونه چه هیڅ تفاوت نه سره لري. او دا یې هم مقرره کړې ده چه په دغه لار کښې هیڅوك په بل باندې کوم فضیلت او بهتري نلري مګر د خپلو کفا یاتو، اعمالو او ذاتي لیاقتونو او ښو کارو نو له مخې چه د خپل خدای، خپل ځان، خپل وطن او خپلې ټولنې د پاره یې وړاندې کوي نو په همدې ترتیب د اسلام مقدس دین هغه ټول طبقاتي اختلافات او قبیلوي تفاضل او نسبي او حسبي تفاخر له منځه وړی دی کوم چه د دغه اصل په خلاف او سې او د انساني ارزښت د مساوات ماڼۍ ته صدمه رسوي .

په دغه باره کښې قرآن کریم فرمایي:

يا ايها الناس انا خلقناكم من ذكر وانثى وجعلناكم شعوباً وقبايل لتعارفوا ان اكرمكم عندالله اتقاكم، ان الله عليم خبير ط

داې خلکو! تاسې مونږ له يوه نارينه (آدم) او له يوې ښځې (حوا) نه پيدا کړي ياستي او تاسې مو قوم قوم او قبيله قبيله گرځولي ياستي ترڅو چه يو بل به دغو نوموسره وپيژني، په تحقيق له تاسو څخه هغه څوك دخداى په نزد مکرمتردى چه متقي تر او پرهيزگار تروى» يعنى دټولو انسانانو د نسب سلسله يوه ځاى ته منتهي کيږي اوله يوې مبدأ څخه سرچينه اخلي او داخبره دا ښيي چه ټول انسانان په انساني ارزښت او قيمت کښې سره برابر او مساوي دي او هيڅوك په بل با ندې د فضيلت او بهتري حق نلري مگر داچه داعمالو۔ کردار او گفتار له مخې بهتري ولري .

همدارنگه حضرت پيغمبر (ص) دحجة الوداع په هغه خطبه کښې چه داسلامي دين اساسات يې په هغې کښې جمع کړي اودمسلمانانو دپاره يې در و ستې دستورالعمل په حيث په لاس ورکړى داسې فرمايلي دي. « اې خلکو! تاسې په دې وپوهيږئ چه ستاسې پروردگار يودى او دپوه خداى بندگان او ټول ديوه پلار زامن ياستيء. تاسې ټول له آدم څخه پيدا ياست او آدم له خاورو څخه دى. ستاسو له جملې څخه هغه څوك دخداى په نزدد کرامت او فضيلت خاوندى چه تر ټو لو متقي تر او سى . هيڅ عربي په عجمي او هيڅ عجمي په عربي، نه سور په سپين او نه سپين په سره باندې کوم فضيلت لرى مگر په تقوى او پرهيزگارى.

آيا دغه حق ما تاسې ته ورساؤ او خپلې غاړې مې خلاصې کړې ؟

اې خدايه! ته شاهداوسه چه ما دغه حق خپل امت ته ورساؤ، په تاسې لازم دى چه دغه حکم خپلو بيرته پاتې کسانو او يو نسل بل نسل ته ورسوى او عملي يې کړي »

يوه ورځ دحضرت پيغمبر(ص) په حضور کښې دابوذر غفارى او يوه زنگي مړيي ترمنځ په څه خبره کانه وانه شوله او خبرې يې سره واړ ولې او په نتيجه کښې ابوذر ته داو په دغه مړيي باندې په قهرشو اوورته يې. ووېل دتور پوستې زويه! ته له ماسره خبرې اړوې؟ حضرت پيغمبر ددغې خبرې په اور يدو مشتعل شو او ابوذر ته يې وو يل دچه له ټاکلې حدنه دتجاوز وکړې او ته داحق نلرى چه هغه ته په ټيټه نظر وگورى ځکه چه د سپين پوستې زوى دتور پوستې په زوى کوم فضيلت او بهتري نلري مگر په تقوى اوښه عمل »

نوا بوذر په خپله خبره پښیمانه شو او خپل بارخویی په ځمکه کېښود او هغه تور پوستی ته یې وویل چه زما په بارخو وخیځه او له پښویې لاندې کړه. یعنې په ډېر عجز او انکسار یې معافی ترې وغوښته.

(۲) دقانون دوړاندې په عامه حقوقو کښې مساوات:

ددغې نوع او پخوانی نوع دمساوات ترمنځ داسلام په موقف کښې کوم فرق او توپیر نشته.

اسلام دا مقرره کړېده چه دقانون دوړاندې دعامه حقوقو په باره کښې پرته له دې چه دشاه او ګدا، فقیر او بډای، شریف او وضیع ترمنځ فرق او توپیر و شی بایدله ټولو سره مساویانه معامله وشی او په یوه سترګه ورته وکتلی شی.

په دې مورد کښې حضرت عمر چه داسلامی عدالت لوی ممثل دی او اسلامی شریعت یې په متینو ستنو درولی او دقضاوت شئونو ته یې یو خاص تنظیم ورکړی دی په خپله اومړنی خطبه کښې چه وروسته له انتخاب نه یې ایراد کړه داسې وائی:

«ای خلکو! قسم په خدای دی چه ستاسې ضعیف ترین فرد چه دحق خاوند وی زما په نزد قوی ترین سړی دی ترڅو چه دهغه حق ورته واخلم او ضعیف ترین سړی زما په نزد هغه زورور دی چه دبل په حق یې ځېټه اچولی او سی ترڅو چه حق ترې واخلم» نو موړی په خپله هغه رساله کښې چه دقضا په باره کښې یې ابوموسی اشعری ته لیکلې وه او په هغی کښې یې داسلامی قضا مهم احکام راغونډ کړی ؤ داسې فرمایی:

«دخدای دبنده او مسلمانانو دامیر عمر ابن خطاب له خوا دقیس زوی عبدالله ته: سلام دې وی پر تا! ته پدې پوه شه چه قضا یوه محکمه فریضه او هغه جاری سنت دی چه باید پیروی یې وشی.

کوم وخت چه کومه قضیه درته وړاندې شی نو په کامل فهم او کافی دقت سره یې مطالعه کړه او چه حق درته ښکاره شو نو بیا خپل حکم صادر او اجرا کړه ځکه چه دحق خبرې چه نفاذ ونلری او تر اجرا لاندې ونه نیول شی کومه اجتماعی ګټه نلری.

دمدعیانو او متخاصمانو ترمنځ په حکم، ناسته او ولاړه کښې برابری او عدالت وکړه ترڅو چه شریف او قوی وګړی ستا دحق دپایمالولو تمه او توقع

ونکړی‌او ضعیف‌خلك دې‌له‌عدالت اوانصاف نه‌مأیوس نشی؛ یعنی له‌متخا صمینو سره‌په‌ټولو اوضاعو، حرکاتو اوسکناتو کښې‌داسې برابری اومساوات مر عی وساته‌چه هیڅوګړی خواه‌شریف وی که‌وضیع، قوی‌وی‌اوکه‌ضعیف، بېځای‌وی اوکه‌فقیر ستاپه‌عدالت اوانصاف اعتماداو باور و لری او په نورو وسا یلو متشبث‌نشی.

کوم‌وخت چه‌حضرت عمروفاتېده نودهغه‌چاد‌پاره‌یې‌چه له‌ده ور و سته به دمسلمانانو دخلافت‌اوامارت‌واکې په‌لاس‌نیسی داسې‌وصیت نامه‌پرېښوده.

«دخلکوترمنځ دمساوات ملاحظه وساته اوټولوته په‌یوه‌ستر‌ګه و ګوره.

دحق‌داسترداد په‌باره‌کښې دقوی‌او ضعیف پروامکوه.

دخدای په‌لارکښې دچاملامتې ته‌مګوره‌او په‌ټینګ عزم‌دخدای‌په‌لارروان اوسه. کوم واك‌اواختیارچه‌پاك‌خدای‌تاته‌درکړی هغه‌په‌ناوړه توګه‌مه‌استعمالوه له‌خودسری، خودمختاری‌او مطلق‌العنانی لاس واخله، په‌اجتماعی‌کارونوکښې خپلوشخصی علایقوته موقع‌مه ورکوه اومه‌دشخصی مینی‌اوعلا قې، د ښمنی او عدوات‌له‌مخې‌له‌چاسره‌معامله کوه بلکه‌په‌هر کارکښې‌دخدای اوعدالت ملا حظه ساته‌اورعایت یې‌کوه»

دغه‌جریان یوازې ترخپرو پورې منحصرنه‌ؤ اونه‌یوازې دقوانینوپه‌وضع اوتقریر پورې‌مخصوص‌ؤ بلکه‌داسلام دلمړی‌پېړی‌روښانه تاریخ‌مونږ ته‌داښیی چه‌دغه‌قواعد اومبادی‌په ټوله‌معنی سره‌تر‌اجرا او تنفیذ لا نده ېوو. دحضرت پیغمبر(ص) اودخلفأراشدینو په‌دوره یعنی‌داسلام په هغه‌طلا ئی دور ه کښې چه داسلام‌عالی مبادیوپه‌ډېره روښانه‌توګه ظهورکړی‌ؤ اود اسلام دعا لی تعلیماتو دمظاهرو روښانه‌مثال‌ؤ دغه‌مبادی په‌ډېردقت‌او مراقبت سره تر اجـرا لاندې نیول‌کیدل اونافذؤ.

یوه‌ورځ اسامه‌بن‌زید چه‌په‌حضرت محمد(ص) باندې تر هر چا ګران ؤ حضرت‌پیغمبر ته‌راغی‌او داسود دلور فا طمی په باره‌کښې یې چه دغلا په حد محکومه شوې‌وه شفاعت‌وکړاوویې‌غوښتل چه‌دغه‌ښځه‌څرنګه‌چه‌یوې‌شریفی‌کورنی ته‌منسوبه‌ده که‌له‌حدنه معافه‌شی‌ښه‌به‌وی.

حضرت پیغمبر لەدغەشفاعت څخەبدەومنلە اواسامە یی وراتەاو ور تە یې وویل «اتشفع فی حدمن حدود اللّٰه» یعنی آیا دخدای پە حدودو کښی شفاعت کوې؟

نو بیاپورتە شواوخلکو تەیی دخطابې پە توگەوفرمایل .«چەلەتاسې څخە پخوا نې خلك پەدې دخدای دغضباو مواخذې مورد وگرځیدل اوهلاكشول چە پە دوی کښی بەکەکوم شریفاودنامە سړی غلاوکړە پەهغەباندې بە یې حدنە جاری کاۋ اوخوشې کاۋ بەبی اوکەبەکوم ضعیف سړی غلاوکړە نوتاکلی حدبەیی پرې جاری کاۋ.

نوزمادې پە هغەخدای قسم وې چە زماهستی دهغە پەاختیار کښی دە کە زمالور فاطمە هم غلاوکړی زە بەیی لاس پرې کړم اوشرعی حدبە پرې جاری کړم»

دحضرت عمر دخلافت پەدورەکښی یوەورځ یوە یهودی دحضرت علی لەلاسە شکایت وکړ نوکوم وخت چەدواړە «یهودی اوعلی» دخلیفەپەمخ کښی ودریدل نوحضرت عمر یهودی تەپەخپل نامەخطاب وکړ اوحضرت علی بی پە کنیە یعنی اباالحسن وباله. دحضرت علی پەسیمابنەکښی دقهر اوغضب نښی نښانې وبرېښیدې اوحضرت عمر گمان وکړ چەعلی لەدې کبلەمتأثر شوی دی چەلەیوە معمولی یهودی سرەڅنگ پەڅنگ ولاړدیاو دهغەدشکایت پەاثراحضار شوی دی .

نوحضرت عمردخپل گمان پە اساس ورتە وفرمایل چەپەدې پە قهر یې چە مدعی دې یهوددیاوتە لەهغەسرە برابر زمادعدالت پە محضر کښی و لاړ یی ؟ حضرت علی ورتەوویل چەنه! لەدې کبلەنەیم پەقهر بلکە پەدې متأثر یم چەتازما اوددغەیهودی ترمنځ دمساوات اوبرابری مراعات ونکړ ځکەچەزە دې پەکنیە اوهغەدې پەخپل نامەیادکړ اوکنیې پەنامەیادول دتعظیم اواحترام نښە دە .

لەدې څخەدامعلومیږی چەنەیوازې موظفو کسانو اود عدالت او قضا وت متصدیانو داسلامی مساوات اوبرابری مراعات ساتە بلکەنورو مسلمانانو هم ددغەاصل دتطبیق او تنفیذ ملاتړ کاۋ کەڅەهم ددوی پەزیان تمامیدە .

کوم وخت چەعمروابن العاص دمصر نائب الحکومەۋ دهغەزوی یوەورځ دمصر یونامتو سړی بې گناه اوپەناحقە وواهەنوهغە قسم وکړ چە ستالەلاسە بە خلیفە

حضرت‌عمر ته‌شکایت وکړم ترڅوچه بازخواست درڅخه‌وکړی څکه چه دلته خودې‌خپل پلاروالی‌دی اوستاپه‌باره کښی‌به زماشکایت وانه‌وری.

دمصردوالی‌زوی‌ورته‌وویل‌چه‌ورځه‌لاس‌دې‌خلاص ماته به‌څوك‌څه ووایی چه زه‌دیوه دېرلوی‌سړی زوی‌اومکرمې کورنی‌ته‌منسوب‌یم. هغه‌سړی‌داخبره‌په‌زړه کښی‌واچوله اواتفاقاً دحج‌په‌موسم کښی‌دحج دپاره‌مکې ته‌راغلی‌ؤ گور ی چه حضرت عمرهم له‌خپلوخاصو ملگروسره چه عمروابن العاص او دهغه زوی هم ورسره شته په‌مکه‌کښی دی دغه‌سړی موقع‌غنیمت وگڼله‌او ورو‌ړاندې شواوخپل عرض‌یی ورته‌وکړ چه‌دمصردوالی‌زوی( چه‌دلته حاضردی) زه‌په‌ناحقه وو هلم‌او چه‌ماته‌ورته یادکړې راته‌یی وویل چه ماته‌به‌څوك څه‌ووایی په‌داسی‌حال کښی چه‌زه دمصردوالی زوی‌یم؟

حضرت‌عمر چه‌کیفیت ځانته‌معلوم کړنوعمراوبن‌العاص‌ته‌یی‌مخ‌راوا‌ړاؤ او خپله مشهو ر ه وینا یـی ورته‌تکرارکړه « له‌کومه را ایسې‌تاسې خلـك خپل مریان‌کړی دی؟په‌داسې حال‌کښی چه ټول‌له خپلو میندوځینې‌احرار اواصیل پیداشوی دی»نوبیایی عارض‌ته مخ‌کړاو خپله‌دره یی‌ورکړه اوورته‌یی وویل څنگه‌چه یی‌ته‌وهلی یی‌هغسی‌دغه دمکرمې‌کورنی زوی‌ووهه اوخپل قصاص‌ترې واخله ترڅوچه دوباره‌څوك دغسې‌کار ونکړی‌او دزوراوڅوکی خاونـدان په رعیتی‌خلکوظلم‌اوتیری ونکړی.

یوه‌ورځ‌حضرت‌عمر دخپل‌خلافت‌په‌دوره کښی‌یوسړی او ښځه په زناولیـدل اوویی‌پتیله چه‌دزناحدپرې جاری‌کاندی.

نوخلك‌یی راټول‌کړل اونظریه یی‌ترې وغوښتله چه‌تاسې‌به دې کښی څه و ایاست‌چه خپله‌امیر المؤمنین یوسړی‌او ښځه‌په زناسره وگوری؟نوحضرت‌علی ابن‌ابی‌طالب ورته‌پورته‌شواوپه ځواب کښی یی ورته وویل: چه‌په‌دې‌باره کښی امیرالمؤمنین له‌نورو مومنانو اوعادی‌افرادو نه‌علاوه‌کوم حیثیت‌نلری نو که ته‌غواړې چه‌په‌دغو کسانو دزناحد جاری شی بایدڅلورشاهدان‌راولې‌اولادقذف دحدپه‌درو ووهل‌شې ! اوبیایې‌دا آیت‌ولوست. والذین‌یرمون‌المحصنات‌ثم‌لم‌یأ تو اباربعته شهداء فاجلدوهم‌ثمانین‌جلدة ولاتقبلوالهم‌شهادتاًابداً واولـئك‌هم‌الفاسقون

د څوك چه مېړه و ښې ښځې په زنا تومتي کوي او بيا څلور تنه شاهدان ونشي تېرولی نو هغوی ته اتيا درې ووهي او د هغوی شهادت بيخي نه قبلوي. دغه کسان فاسقان دي او په ناحقه سره پاك لمنې ښځې تومتي کوي، نو چه حضرت عمر رض دغه خبره واورېده بيا چپ شو او هېڅ يې هم ونه ويل او هغه دواړه يې معرفي هم نکړل چه د قذف د حد مورد و گرځي .

د اسلام مقدس دين د دغې مبدأ د تطبيق او تثبيت د پاره د مسلمان او غير مسلمان ترمنځ په مساوات قايل دی او مقرره کړې يې ده چه هغه ذميان چه په يوه اسلامي ښار کښې اوسېږي او لاد مسلمانانو په فتح کړيو ښارونو کښې استوگنه کوي له مسلمانانو سره مساوي حقوق لري او څه منافع چه د مسلمانانو د پاره دي هغه د دوی د پاره هم شته او کوم تکاليف چه په مسلمانانو باندې ايښودل شوي هغه په دوی هم کالي. کوم قضائي قوانين چه په دوی تطبيقيږي هغه عيناً په مسلمانانو هم تطبيقيږي او ټولو ته په مساوي نظر کتل کيږي البته ديني شئونات او مذهبي مسايل بيل دي چه د هر ملت ديني عقايد او شئونات خپل مصئونيت لري او د هر چا د معتقداتو د احترام رعايت کاوۀ شي .

تاسي اوس دغه عالي او لوړ مبادي د اوسني ديموکراسي د مدعيانو له رويې سره مقايسه کړئ چه څومره تفاوت او توپير سره لري؟ دغه مبادي چيرته دي او د غرب د ديموکراسي د لارې د روانو ملتونو رفتار او رويه څه ده؟ داسي ډير ديموکراسي هيوادونه شته چه همدا اوس د خپلو تور پوستو او سپين پوستو زامنو فرق سره کوي د دغه فرق او توپير مظاهر د يوه هيواد د اوسيدونکو د ژوندانه په مختلفو احوالو او متفاوتو معاملاتو کښې په ښکاره ليدل کيږي حتی دغه توپير په خپله په قضائي شئونو کښې او د عقوباتو د تطبيق په لارو او طريقو کښې هم شته او داسي ډير ايدل شوي دي چه سپين پوستو د هغه تور پوستي اوږي تړلي او پرته له کومې قانوني محاکمې يې هغه له ونې پورې او لا له کومې ستنې پورې تړلي او اور يې ورته کړی او لا يې اندام اندام پرې کړي دي کرم چه له سپين پوستې ښځې سره يو ځای شوی وي او لا يې له هغو قوانينو نه تجاوز او تيری کړی او سي کوم چه د تور پوستو د پاره وضع شوي دي .

په دې څو نژدې کلونو کښې ځينو اخبارونو دوه ډيرې عجيبې پيښې نشر کړې دي چه له هغو څخه دغه حقيقت په ښکاره ډول څرگنديدای شي .

پو واقعه خواداوه چه دامریکی دمتحده آیالاتو د الاباما په نومي ایالت
اوسیدونکي یوی نجلۍ چه ( اوثر ین لوسی ) نومیده وغوښتل چه خپل عالي تحصیلات
دغه ایالت په پوهنتون کښی پای ته ورسوی نو خپل درخواست ئی ددغه پوهنتون
اداري ته وړاندی کړاو دغه پوهنتون چه وکتله چه دغه نجلۍ تور پوستی ده دهغی
درخواست ئی رد کړ او هغه ئی په شا وشړله .

دغه نجلۍ مجبوره شوه او دهغه ایالت محکمی ته یې خپل دغه شکایت وړاندی کړ
او محکمی چه د نوموړی شکایت معقول ولید حکم ئی ورکړ چه دغه نجلۍ باید په پوهنتون
کښی داخله کړی شی او له خپل دغه تصمیم څخه ئی نوموړی پوهنتون ته د (١٩٥٥ کال)
دجولائی دمیاشتی په اوومړی تاریخ خبر ورکړ کوم وخت چه ددغه پوهنتون زده کوونکی
او زده کوونکو په دغه جریان خبر شول نو ددغی نجلۍ دشمول په ضد ئی په بیروسختو
او زدو مظاهرو لاس پوری کړاو تقریباً اووه زره شاګردانو په دغه مظاهره
کښی ګډون درلود چه دمختلفو پوهنځیو نمایندګی ئی کوله .

دغو زده کوونکو شاګردانو په ګډوډ شوا او بازارو کښی ددغی نجلۍ د مرګ ناری
وهلی او دهغی تمثالونه به ئی جوړول او په عمومی میدانونو کښی به ئی سوځول
او هغه لوبه به ئی ورسره کوله کومه چه به ئی له هغه زنګی سره کوله چه له کومی
سپین پوستی ښځی سره به یو ځای شوی وُ . حتی نه یوازی په دغو مظاهرو به ئی اکتفا نه
کوله بلکه ددوی له جملی څخه یوی ډلی به خپله مستقیماً په دغه نجلۍ حمله وروړه
او په تیږو او خوساګیو به ئی ویشتله او قسم به ئی ورته خوړ چه په هیڅ صورت دغه
نجلۍ پری نږدی چه له دوی سره یو ځای درس ووائی او په خپل هیواد کښی ددوی
په شان دعلم له زده کړی برخه واخلی .

دغو مظاهراتو د پوهنتون دچارو متولیان هم راو پارول او د٥٦ ١٩ کال
د فبروری په شپږم تاریخ ئی د محکمی د فیصلی په ضد حکم صادر کړ او ښکاره یې کړه
چه دغی نجلۍ ته باید په هیڅ پوهنځی کښی دشمول موقع ورنکړی شی .

ددغی فیصلې په اثر نوموړی نجلۍ مجبوره شوه چه دخپل ژوند دساتنی او
بقا دپاره دخپل کور کونج و نیسی او نوره له خپل کورنه راونه وزی خو سره له دې
یې هم خپله دعوی دوباره د الاباما د ایالت د مرکز فیدرالی محکمې ته چه په

برمنګهام کښې وه او دغه نجلۍ هم هلته له نپلو نورو خوېندو سره اوسېده و راندې کړه او له محکمې څخه یې وغوښتل چه د پوهنتون فیصله لغوکاندی. خو سره لدې هم نوموړې په مختلفو صور تو نو تهدید ېدله او پداسې حال کښې چه دا په خپل کور کښې ناسته وه دغه سپین پوستي ورته ګواښېدل او کله نا کله به یې د ټیلفون په وسیله په مرګ ډاروله او په عذاب وله به یې حتی هره ورځ پو ره او ساعته متوالی به په هرو دوو دقیقو کښې د ټیلفون زنګ راته او چه ګوشك به یې پورته کړ بدرد به یې اورېدل او تهدیدېدله به نو بیا دغې مسکینې نجلۍ ته بله چاره پاتې نشوه بې لدې چه بر منګهام پرېږدی او کوم بېل ځای ته هجرت وکړی تر څو چه د دغو خلکو له شر او ضرر څخه خلاصه شی.

سره لدې چه محکمې بیا حکم وکړ چه نوموړې نجلۍ دې په دغه پوهنتون کښې شامله کړی شی خو د دغه پوهنتون اداری مجلس د دغې فیصلې له صدور نه څو ساعته وروسته غونډه وکړه او په اتفاق سره یې تصویب کړه چه نوموړې نجلۍ د اوثر ین لوسی» ته دې د پوهنتون د شمول موقع ورنه کړی شی او په دی ترتیب یې د محکمې له حکم سره معارضه او مقابله وکړه او هغه یې مات کړ.

په دغه مجلس کی په دی خبره زور ولګا ؤ شو چه دغې نجلۍ د پوهنتون په اداری نا حقه تورتړلی دی او ویلی یې دی چه په دغو مظاهرو کښې چه ددی په ضد وشوی د پوهنتون اداری وکړ و لا س د ر لو د او شا ګردان یې دغه کار ته لمسول. حتی د دغه پوهنتون د اداری دغړو له جملې څخه یو تن هغه وخت چه د محکمې په مخ کښې د شهادت د پاره راوغو ښتل شو په ډاګه یې وویل: زه دا ریښتیا وایم چه دغه نجلۍ سپین پو ستی شا ګـر دا ن و نـه وژنـی او محـکمه د خـپلې دغـې فـیصلې په اثـر ددغې نجلۍ (اوثر ین) ژو ند په خطر کښې واچوی او د قتل سبب یې وګـرځی.

سره له دې چه د «الاباما» حاکم د تو ر پوستو او سپین پوستو له جلا جلا څخه یو ګډ کمیسیون ټاکلی ؤ چه ددغو خلکو تر منځ د نژادی توپیر مسئله د مسالمت له لارې حل او فصل کاندی خو بیا هم همدغه حاکم په خپله په دې

خبره تصریح کړیده چه هرعاقل او هوښیار سړی پوهیږی چه سپین پوستی
اوتورپوستی ماشومان هیڅکله هم په یوه لار کښې مدارسو ته نه ځی او نه به
لاړ شی .

دوهمه پیښه‌هم دالاباما په همدې‌ښار «برمنګهام» کښې پیښه شوه‌اوهغه
داوه چه‌یوه تورپوستې زنګی‌ښځه په یوه عمومی سرویس کښې‌په‌هغه‌قطارکښیو
کښیناسته کومې چه‌دسپین‌پوستو دپاره ټاکل شوې‌وې (پدغه‌ایالت کښې‌دتورپوستو
اوسپین پوستو فرق په‌سرویسونو کښې هم کیږی )

نوکوم وخت چه‌داله‌دغو څوکیو‌نه پاڅول شوه اوهغه قطارته بوتلی شوه
چه‌دزنګیانو دپاره ټاکل شوی ؤ پولیسی افراد راغلل او دپولیسو شعبې‌ته‌یې
بوتله اوبیامحکمې‌ته بوتلی شوه او محکمې دتاوان په‌ورکړه محکومه کړه .
ددغه حکم په‌اوریدو اوشیوع سره ددغه ښار زنګیانو ددغه‌حکم‌پرضد داحتجاج
په‌توګه له ښاری سرویسونو سره مقاطعه وکړه خو مربوطو څانګو په‌دې باره
کښې فیصله صادره کړه چه‌دغه مقاطعه غیرقانونی‌ده اوباید مخه‌یې ونیوله‌شي
اوددغه حکم له‌اصدار اواعلان‌نه وروسته سل‌تنه زنګیان په‌همدې تومت‌ونیول
شول اومحاکمې‌ته‌را ښکول شول چه‌په‌دغه‌مقاطعه‌کښې‌ئې لاس‌درلود اود ۱۹۵٦ کال
دمارچ په‌میاشت کښې‌ترمحاکمې لاندې ونیول شول . نواوس‌تاسې‌قضاوت‌وکړئ
چه‌اوسنی دیموکراسی څه‌ده‌اوداسلام‌دمقدس دین‌دمساوات اوبرابری لوړ
مبادی‌څه‌دی؟ دغه‌دیموکراسی چیرته‌ده او داسلام دمساوات‌موضوعه قوانین او
مقررات چیرته دی چه ذمیانو اومسلمانانو اودنورومفتوحه‌ممالکو دوګړو
دپاره یې وضع کړی‌او دژوندانه په‌ټولوحقوقوکښې‌یې‌له مسلمانانو سره‌مساوی
ګڼلی اودهغوی‌عقایداو دینی‌شعایر یې‌واجب الاحترام بللی‌دی؟

تاسې‌وواياست چه‌اسلام له‌خپلومفتوحه هیوادواو ملتوسره څه رویه‌کوله
اواوسنی دیموکراسیان له‌خپلو مستعمرو سره‌څه کوی؟

آیاسخترین عذابونه نورته رسوی؟ آیادخپلو مستعمراتو دخلکو دتذلیل
دپاره‌سخت اومشکل‌قوانین نلری‌او په‌ډېر عنف‌او خشونت‌یې نه‌تطبیقوی ؟

آیا هغه وضع چه دغه مونږ یې، متمدنین او دیموکراسیان یې له خپلو مستعمراتو سره کړی دانساني حقوقو خلاف نه ده ؟

آیا دغربي نژادو او مستعمراتو دخلکو حقوق او قوانین یو دی او یو راز معامله ورسره کولی شي؟ آیا داکوشش نه کیږي چه دمستعمراتو اصلي اوسیدونکي له خپلو اوطانو وشړي او په عوض یې دغربي نژاد خلک راولي او میشت یې کړي؟

آیا اروپایي استعماریانو دامریکې دسرو هنودو او نورو اصلي اوسېدونکو سره او همدا رنګه داسترلیا او نیوزیلند له اصلي اوسیدونکو سره دغه وضع ونکړه ؟ حتی ددغو قارو اصلي اوسېدونکي فرار او منقرض شول ـ بیخ او بیخ اور یې ښه یې پاتې نشوه ـ ټول ورك شول او هیڅوك پاتې نشول مګر هغه ضعیفان او درماندګان چه سرګردانه یوه خوا او بله خوا ګرځېدل او اروپایانو به لکه دښکار مرغان تعقیبول او وژل به یې ترڅو چه دهغوی ځمکې او هستي دوی ته پاتې شي.

له همدې کبله ؤ چه دملګرو ملتو په منشور کښې داماده ځای کړی شوه چه دیوه ملت اباد ت او فرار ول ممنوع دی او هیڅوك حق نلري چه یو ملت له خپلې خاورې وشړي او په ځای یې نور میشت شي.

۳: په اقتصادي شئوناتو کښې مساوات:

اسلام ټل کوشش کړی دی چه دانساني ډګروترمنځ په اقتصادي شئوناتو کښې مساوات او برابري برقرار ه وي. په دې ترتیب چه په دغه مورد کښې داستفادې فرصت هرچاته میسر وي او طبقاتي توپیر وجود ونلري او په دغه مورد کښې دټولو طبقاتو ترمنځ نږدې والی راولي او ټول په ګډه سره دژوند له وسایلو استفاده وکړي او په عادلانه توګه فایده یوسي.

داسلام دین ددغې نوع مساوات دمبادیو دتقریر او تثبیت په باره کښې هغه مقام او هغې درجې ته رسېدلی دی چه بل هیڅ دین او مذهب نه ورته رسېدلی او نه به ورسېږي او حتی ورته نږدې قدرې به هم نه شي. نه پخواني ادیان او نه اوسني مسلکونه دغې درجې ته رسېدلي او نه به ورسېږي .

اسلام ددغې غایې دتثبیت او تحقیق دپاره ډیر وسایل غوره کړي چه مهم ترین وسایل یې دغو لاندینیو نورو وسایلو ته راجع دي .

۱ـ شايد دغو ټولو وسايلو له جملې څخه مهمه وسيله هغه وي کومه چه اسلام د کسب او کاروبار د پاره ناوړه بللې او رد کړې ده.

پر همدې اساس اسلام ټولې هغه لارې په قطعي ډول حرامې کړې دي چه عادتاً د سرمايه تضخم او غونډېدو وسيله ګرځي ـ خو له دغه تضخم د نورو دغو لوئي لارې وي او که د استغلال او تحکم له لارې ـ خو له دانحصار په توګه وي. او که له خپل نفوذ او تسلط څخه د سوء استفادې په توګه. او دا هغه لارې دي چه اغلباً د خلکو د ثروت او تمول د تفريق او تفاوت سبب ګرځي او د خلکو د ثروتو او دارايي ګانو ترمنځ فاصله اوړې والې ايجادوي او اقتصادي موازنه او اعتدال له منځه وړي او د دغو مواردو په تحريم کښې د خلکو ترمنځ د اقتصادي موازنې د ساتنې ملاحظه په نظر کښې نيول شوې او په همدې غرض سود ـ رشوت، احتکار، قمار او نور دغسې کارونه حرام شوي دي.

په همدې ملاحظه د اسلام دين د سود ټولې لارې حرامې کړې او په قطعي ډول يې د سود عمليات ممنوع ګرځولي دي. دغه ګناه يې دلوئو ګناهونو له جملې څخه بللې او مرتکب يې د خداى او رسول په جنګ ورولي دي.

لکه چه قرآن کريم فرمايي.

«الذين يأكلون الربا لا يقومون الا كما يقوم الذى يتخبطه الشيطان من المس ذلك بانهم قالوا انما البيع مثل الربا و احل الله البيع و حرم الربا فمن جاءه موعظة من ربه فانتهى فله ما سلف وامره الى الله. ومن عاد فأولئك اصحاب النار هم فيها خالدون يمحق الله الربا ويربى الصدقات والله لا يحب كل كفار اثيم. يا ايها الذين امنوا اتقوا الله وذروا ما بقى من الربا ان كنتم مؤمنين. فان لم تفعلوا فأذنوا بحرب من الله ورسوله وان تبتم فلكم رؤس اموالكم لا تظلمون ولا تظلمون» يعنې هغه کسان چه سود خوري د قيامت په ورځ له خپلو قبرونو نه به داسې راپاڅېږي لکه چه شيطان په پنجه وهلى او حواس يې ورخراب کړي اوسي. داسې اردلې پردلى پښې به ږدي او ټينګې به وهي لکه لېونيان او آسيب وهلي چه په لاره ځي ـ ځکه چه دوى د حلال او حرام فرق نه کاوه او ويل به يې چه د بيع او سود څه فرق نشته او دواړه يو شان دي په داسې حال کښې چه بيع

خدای روا ګرځولې او سود یې حرام ګرځولی دی. نو روښانه له دغه چه سود حرام ګرځیدو ګه
چه دغه بدکار نه ځان وژغوره نو د پخوانی سود په وسیله حاصل شوی مال دده
خپل دی او د آخرت کار یې خدای ته پورې اړه دی چه بښنه ورته کړی او که نه؟ او څوک
چه د سود له حرمت وروسته هم دغه کار ته اقدام کوی دغوی ځای د دوزخ اور دی
چه تل به هلته پکښې اوسیږی. سود په مال کښې خیر او برکت نه وی او پاک خدای
یې ورک کوی او د خیر او خیرات په مالونو کښې برکت اچوی او زیاتوی یې.
او پاک خدای هیڅ ناشکره او ګناهګار نه خوښوی.

ای مومنانو له خدایه ووېرېږئ او له همانت نه وروسته سود پرېږدئ که چیرته
رښتیا نی مومنان یاستی. او که داسې ونکړئ او د سود له حرمت نه وروسته
بیا هم سود خورئ نو د خدای او رسول جنګ ته چمتو اوسئ. یعنی تاسې دغه رو.ه
له خدای او رسول سره د جنګ او مقابلې اعلان دی او څوک چه له خدای او رسول سره
د جنګ اعلان کوی په دنیا او عقبی کښې به یې رسوا کاندی.

او که توبه مو وویسته نو ستاسې اصل مالونه ستاسې دی چه نه به تاسې په نورو
ظلم کوئ او نه به په تاسې ظلم کاوشی»

سود د اسلام په شرع کښې دې ته وایی چه یو سړی یو بل محتاج سړی ته یوه
اندازه نغدې پیسې ور کړی او له یوې ټاکلې مودې نه وروسته یې له یو څه معینې
ګټې سره بېرته ترې واخلی.

همدارنګه د اسلام د ټولو هغه معاملې حرامې کړې دی کومې چه غولونې
رشوت او ناوړه استفادې ته منجرې کیږی او په ناجایزه او باطله توګه د خلکو
د مالونو د خوړلو سبب ګرځی لکه چه قرآن کریم فرمایی.

ولاتأكلوا اموالكم بينكم بالباطل وتدلوا بها الى الحكام لتأكلوا فريقاً
من اموال الناس بالاثم وانتم تعلمون .

«تاسې په خپلو منځو کښې خپل مالونه په باطله او ناروا توګه مه سره خورئ
او هغه حاکمانو ته د رشوت په توګه مه وړاندې کوئ چه د رشوت په وسیله د نورو
یو څه مالونه په ناروا په لاس راوړئ او ویې خورئ او ښه پوهیږئ چه دغه ناروا ده
او سره له هغې یې هم کوئ».

حضرت رسول (ص) فرمایی «من غش امتی فلیس منی» یعنی چا چه زما امت وغولاوه او دوغولونی او فریب له لاری یی استفاده تری وکړه هغه زما امت نه دی «بل ځای فرمایی - البیعان بالخیار مالم یفترقا، فان صدقا وبینا بورک لهما فی بیعهما، وان کتما وکذبا محقت برکة بیعهما.

دخریدار او فروش ګار ترهغه وخته پوری دخپلی بیعی په انعقاد او انفاذ کښی خیار او اختیار اری چه له مجلس نه سره پورته شوی او بیل شوی نه وی.

نو که دوی رښتیا سره وویل او دخپلو مالونو عیبونه او نقصانونه یی ښکاره کړل او سره له دی یی هم بیعه سره وکړه نو پاك خدای به ددوی په دی بیعه کښی برکت واچوی او خیر به تری یوسی او که عیبونه یی سره پټ کړل او بوبل ته یی دروغ سره وو ل نو پاك خدای به یی ددغی بیعی برکت له منځه یوسی او بی برکته به شی «

بل ځای فرمایی: انه لایربو لحم نبت من سحت الاکانت النار اولی به «کوم غوښه چه له حرامو لارو په بدن کښی پیدا شوی وی د دوزخ اور وړده» بل ځای فرمایی: لایکسب عبدمالاً حراماً فیتصدق منه فیقبل منه، ولا ینفق منه فیبارك له فیه، ولایترکه خلف ظهره الاکان زاده الی النار،

«کوم بنده چه له حرامو او ناروا لاری څه مال ګټی او هغه دخدای په لار کښی خیراتوی صدقه یی نه قبلیږی. او که په خپلو خپلوانو یی خوری برکت نلری. او که له ځانه وروسته یی پریږدی نو ددوزخ لاری توښه به یی وی»

همدارنګه اسلام دخلکو دضروریاتو احتکار حرام کړی دی ترڅو چه دضروری موادو دنرخ اختیار دیوی مخصوصی ډلی په لاس کښی ونه لویږی.

پدی مورد کښی حضرت پیغمبر (ص) داسی فرمایی: ومن احتکر طعاماً اربعین یوماً فقد بریء من الله وبریء الله منه «چا چه څلویښت ورځی خوراکی شیان احتکار کړل او په خپل کور کښی یی وساتل دی له خدایه او خدای له ده نه بیزار شو».

په همدی قیاس د نورو مصنوعاتو او تجارتی اموالو انحصار چه خلك ضرورت ورته لری همداسی باید وګڼل شی.

دهغې کلي قاعدې په اساس چه وایي (لاضرر ولاضرار في الاسلام) یعنې په اسلام کښې ضرر رسول او متضرر کیدل جایز ندي ، ټول هغه حرکات ممنوع دي چه د خلکو د ضرر سبب گرځي.

همدارنګه اسلام د نورو د مالونو د خوړلو د پاره له خپل قدرت او نفوذ څخه ناوړه استفاده کول حرام کړي او د هغه مال مصادره کول او ضبطول یې روا کړي دي چه د دولت یوه مامور له دې لارې ګټلي او سي .

اسلام دغسې مالونه د بیت المال ګټلي او ضبط کړي یې دي تر څو چه هغه د مسلمانانو د عامو مصالحو په لارو کښې ولګوي او حاجتمندانو ته یې ورکړي .

دد غې مبدأ اساس خپله حضرت پیغمبر (ص) ایښې او دغه کار یې کړی دی.

دازد دقبیلې یو څوک ؤ چه ابن اللیتیه نومیده او د حضرت پیغمبر (ص) له خوا دزکاتونو، مالیاتو او ګمرکاتو دراټولولو دپاره موظف شوی ؤ نو کوم وخت چه یې خپله وظیفه پای ته ورسوله او بیرته راغی له ځان سره راوړی مال یې په دوه برخې وویشه، یوه برخه یې حضرت پیغمبر ته تقدیم کړه چه په بیت المال کښې یې واچوی او بله برخه یې دځان دپاره بیله کړه او و یې ویل چه داماته خلکو تحفه اوسوغات راکړی دی . دحضرت محمد (ص) په بڼه کښې دقهر او غضب نښې وبر یښیدې او پورته شو او خلکو ته یې وفرمایل . د زه یوله تاسې نه په ځینو هغو کارونو مقرروم چه دهغو اختیار پاک خدای ماته راکړی دی . نو چه بیر ته راشی راته وایی چه دا ستاسی دی

اودا ما ته ابښل شویدی . که داسې خلکو ورته ښنلي نودی باید دخپلې مور اولاد خپل پلار په کور کښې ناست وای چه خلک ورته څه ښې او که نه ؟ معلومه شوه چه له خپلې څوکۍ یې سوء استفاده کړې ده . قسم په خدای دی چه هیڅوک به له خپلې وظیفې نه سوء استفاده ونکړي مګر داچه دقیامت په ورځ به هغه دده په اوږو باروی او د قضاوت او محاسبې میدان ته به راوستی شي . که دغه مال اوښ وی غړغړې به وهي او که غویې وی رمباړې به وهي او که پسه وی رهیزې به » کوم وخت چه ابن اللیتیه دغه خبره واوریده ټول مال یې ورخوشې کړ او لاس یې هم ورنه

ووړ . دحضرت پیغمبر(ص) لەدورې نەوروسته هم دغه مبداء په ډېر کامل صورت دحضرت عمر لەخوا تطبیق شوه او نو موړی خلیفه به دخپل خلافت په دوره کښې هغه ټول مالونه مصادره کول چه د حکومت مامورینو به دخپل ماموریت په حوزه کښې د تجارت، زرا عت او لا له نور و نا مشر و عو لا رو په لا س را و ړ ل او لا به ور ته هدیه کیدل او دتحفی اوسو غات په نامه به ور کول کید ل . ځکه چه دغه ټول د دولت او حکومت دقدرت او نفوذ لەلارې حاصل شوی ؤ او له دولت پوری مربوط ؤ نو ځکه به ئې ترې اخیستل او ضبطول به یې .

دغه وضع ئی دبصری لەوالیانو سره وکړه او دبحرین لەحاکم ابو هریره سره یې هم دغسې وکړل. ابو هریره په بحرین کښې دمالیاتو او زکاتو نودرا ټولولو دپاره دحضرت عمر لەخوا مقرر ؤ او په دې اثنا کښې حضرت عمر تەورسېده چه ابوهریره ډېر ثروت ټول کړی او لەخپلې څوکۍ څخه دسوء استفادې په توګه یې ثروت جمع کړی دی .

نو حضرت عمر دی را وغوښته او ټول هغه مال یې ترې ضبط کړ او په بیت المال کښې یې واچاؤ چه په مدرك کښې یې شك درلود او دماموریت دنفوذ نتیجه یې بالله

په دغه وخت کښې د وی ترمنځ تیرې اوزیاتې هم وشوې او داسې خبرې یې ورته وکړی چه دحضرت عمر لەخوا دعدالت په تثبیت او تحقیق او لەظلم او ناوړی استفادې سره په مقابله او مجادله دلالت کوی . حضرت عمر ورته وو یل دکوم وخت چه ته ما بحرین ته مقررولې خپلې دېنه درلودی او پښی ابلی وې .

او بیا راته راورسیده چه تا دومره ثروت او دارا یی پیدا کړې ده چه په یو بو زرطلا او شپږ شپږسوه طلااسان اخلې . ابوهریره ورته وویل چه دغه اسانز ما خپلواسانو زیږولی دی او دانور مالونه هم هغه هدایاوې دی چه ماته راکړ شوې دی . حضرت عمر ورته وویل چه ستا د مصارفو دپاره ماله بیت المال څخه معاش مقرر کړی و چه ستا ګذاره پرې وشی او دانـور زیاتی شیان داستر داد وړدی چه په بیت المال کښې یې تحویل کړی . ابوهریره ورته وویل چه ته داحق نلرې چه را څخه وا یې خلې

عمر (رض) ورته وویل چه هو! والله چه زه داحق لرم او ملا به دی ودر دوم او

درڅخه وابه‌یی‌خلم نوپسی ورپاڅیده اوخپله‌دره‌یی پسې‌راواخیسته‌اودومره‌یې
وواهه چه‌وینی تری وبهیدې اوبیایی ورته وویل چه‌پورته شه‌ټول‌مال راحاضر
کړه چه‌په خزانه‌کښې تحویل‌شی . نوچه راییو. وړ ابو هریره وویل‌چه‌دامی
دخدای په‌لارکښې ورکړ. حضرت‌عمرورته‌وویل‌چه‌داهلته‌چه له‌حلالې لاری‌دی
ګټلی‌وای اوبیادی په‌خپله رضاورکړی وای نه‌داچه په‌زور درڅخه‌وا خیستل
شو او ‎«‏اوس‌خدای وژاړې‌په قربانی حساب کړی» حضرت عمرعیناً همدغسی
وضع دکوفی‌له والی سعدابن ابی‌وقاص سره وکړه اوهغه ټول مال‌ئی تری
واخیست‌چ مشکوک‌ورته ښکاریده اوپه مدرک‌کښې یی‌شك دراود .

همدارنګه دغسی‌وضع‌یی دمصرله‌والی عمروبن العاص‌سره‌وکړه.عمروته‌یې
ولیکل‌چه‌ستااسراردلته‌داسې‌افشاشوی دی چه‌ډیرمال اومتاع،لوښی اوحیوانات
دی پیداکړی دی . حال‌داچه کوم‌وخت چه‌ته مصرته مقرریدې‌دغه‌شیان دې
نه درلودل . عمروبن‌العاص په‌جواب کښې‌ورته ولیکل چه ز موږ خاوره
(مصر) یوه‌ډیره‌زراعتی اوتجارتی خاوره‌ده اوزه له‌خپلو احتیاجاتو نه زیات‌کار
دلته‌کوم اوله‌دې لارې زما‌دثروت معیارلوړ شوی‌دی‌نه‌داچه مابه‌له‌چانه‌رشوت
اخیستی‌وی. حضرت‌عمر بیرته‌ورته ولیکل چه ز ه د خپلو بد و عما لو او
کاردارانوپه‌حال‌کافی‌خبرتیا‌لرم، ستالیک‌ماته راورسید اوداسی تری‌معلومیږی
چه‌دغه کار تاته دخپل ماموریت په‌حوزه کښې روا ښکاری اوپه‌رښتیا چه
زمابد ګمانی په‌تاباندی ډیره‌شوه اوله‌دی‌کبله می محمدابن مسلمه درو لیږه
ترڅوچه حساب درسره وکړی اوستا کارونه تفتیش کاندی . نوپه‌هرڅه یی
خبرکړه اوهرڅه په‌مخ‌کښې ورته کیده اطاعت‌یی وکړه اوڅه‌شی چه‌غواړی
هغه‌بیرون‌ته ورته راو باسه . غلطی‌مه‌ورسره کوه اومه څه‌شی تری پټوه .
نوعمروبن العاص دحضرت‌عمر دامر اطاعت وکړاومحمد بن مسلمه یی‌پریښو د
چه‌دده ګټلی‌مال ورسره وو یشی.

۲:اسلام د میراث دپاره‌یوداسې حکیمانه نظام وضع‌کړی دی چه دخلکو
ترمنځ دثروتونودعادلانه توزیع اوتقسیم متکفل دی او نه پریږدی چه ثروت
په لږولاسونوکښې تضخم‌اوتجمع وکړی اوغواړی چه تمالك وړووړوملکیاتوته

تقسیم شی او هر څوك استفاده ترې وکړی . ځکه چه اسلام د مړی متروکه دهغه دېروااقاربو او خپلوانوته تقسیموی چه‌پدې ترتیب له یوې خواله ثروت څخه د استفادې دایره پراختیاومومی او له‌بلې خوا د محدودو خلکو په‌لاسونو کښې‌د ډېر ثروت د تجمع اوغونډېدو مخه‌ونیسی. نو دهمدې حکیمانه نظام په برکت د یوې مو دی له تېرېدونه وروسته د محدودو خلکو په لاسونوکښې ډېر ثروت د رنگ نشی کړی او په اتوما تیك ډلونورو لاسونو ته ورځی‌او د استفادې ساحه یې پراختیا مومی اوواړه واړه ملکیا ت ترې جوړېږی او دا ډېره ښه طریقه اوښه لارده چه د خلکو ترمنځ داقتصادی توپیر دمخ نیوی باعث گرځی اوسره نږدې کوی یې او اقتصادی موازنه او اعتدال د خلکو ترمنځ راولی. له دې‌کبله چه اسلام دغه عالی هدف ته په رسېدو ډېرحریص دی هر هغه تصرف یې منع کړی دی چه د میراث قواعد مختل کوی. اوپه همدې مورد کښی پاك خدای وروسته له هغه چه دغه قواعد یې وضع کړل داسی فرمایی :تلك‌حدود الله ومن یطع الله ورسوله یدخله جنات تجری من تحتهاالانهار وذالك هوالفوزالعظیم . ومن یعص‌الله ورسوله و یتعد حدوده یدخله ناراً خالداً فیها وله عذاب مهین .

« دغه د خدای ټاکلی حدود دی او څوك چه دخدای او رسول اطاعت وکړی او ټاکلی حدودیی‌وساتی‌هغه به خدای هغوجنتونو ته وررننباسی‌کوم‌چه دونوله سیوری لاندې بهیې ویالې روانې وی او دا لویه‌کامیابی ده چه دچا په برخه شی . او څوك چه د خدای او رسول نافرمانی او له ټاکلو حدودو تېری وکړی ددوزخ په اورکښی به یې داخل کاندی او د تل دپاره به‌به هغه کښی اوسی او د هغه لپاره رسواکوونکی عذاب مقرر دی»له همدې‌کبله اسلام دا خبره منع‌کړې ده چه څوك خپلی ورثې ته له خپل قانونې حق نه په زیات شی وصیت وکړی په همدې مورد کښی حضرت پیغمبر فرمایی « لاوصیة لوارث » یعنی دوارث دپاره وصیت جایز نه دی لکه چه له ثلث نه زیات پردی سړی ته هم وصیت جایزنه دی . دغه مقررات داښیی چه اسلام

ټولومسلمانانوته‌حق ورکوی چه په ګټه ژوند وکړی او پـه عادلانـه توګه
د ژوند له وسایلو په ګټه استفاده وکړی .

نو اوس تاسې قضاوت وکړیء چه دغه نظام ښه دی او که دغرب نظام‌چه
د متوفی ټول اولا کـثره مال د هغه‌له‌هغه‌اولاد پورې اړه نیسی‌چـه متأ هل
نه اوسی ـ همدارنګه دغربیانو دمیراث په قوانینو کښی یو سړی حق لری
چه‌دخپل ټول مال چاته چه یـې زړه شی و صیت وکړ ی ا و د غه وضع له
یوې خوا د ثروت او سرما یـې د تجمع سبب ګرځی او له بلې خوا د نورو
حقدارانو د کینې اوحسد احساس راپاروی او عمومی نظام خرابوی. اوډېر
کرته دډېرو اضطراباتو او حتی خطرناکو انقلاباتو باعث ګرځی.

۳ـ: اسلام دثروت په مختلفو انـواعو ډول ډول زکـاتـونـه ، مالیات او
جبایات وضع‌کړی دی چه هریو په خپل ذات کښی اجتماعی عدالت تثبیتوی
او د سرمایـې د غونډېدو مخه نیسی .

له هغی جملې څخه دغه لاندې مالیات دی چه په مالدارانو بـا نـدې
اېښودل شوی دی.

(الف) خراج : دایوه نوع نقدی اوجنسی اولایوازی نقدی مالیه ده چه
په‌کال‌کښی یو واریـی‌ادالاز میږی اوپه هغه ځمکه‌اېښودل کېږی‌چه دمسلمانانو
په فتوحاتوکښی راغلی وی‌اولاپخوا له جنګ نه دمفاهمې او معاهدې‌په توګه
قبوله کړې شوې وی .

کوم خراج چه حضرت عمر د عراق په ځمکو اېښی ؤ پداسې ډول ؤ :
په هر جریب ځمکه چه رشقه او نوری ترکاری‌ګانـې به پکښې کرل کېدې
پنځه درهمه اېښې وې . دانګورو ، خرماګانو اوداسې نورو میـوو په باغونو
باندې‌یـی په یوه جریب اس در همه وضع کړې وې او چـه غـنم او وربشې
او داسې نورې دانې چه به پکښې کرل کېدې په یوه جریب یو در هم اویوه
پیمانه غنم اولا وربشې مقررې وې او په دې تـوګه یـی‌دوام درلـود. دغسې
ځمکوته خراجی ویل کیږی .

خراج شرعاً بیت‌المال یعنی دولت ته ورکول کیږی. ترڅو چه هغه دملت په عمومی مصالحو کښی ولګول شی چه په دغو مصالحو کښی دمامورینو ، قضاتو او نورو وظیفه‌دارانو معاش ، دلارو ، مساجدو ، سړکونو ، پلونو اوویالوجوړول اونور عمومی کارونه هم شامل دی .

ب : د معادنو استخراج: په دې باره کښی دولت حق لری چه په هر ترتیب چه عمومی مصالح یې مقتضی وی هغسی رفتار و کړی او دملت دعمومی مصالحو دتأمین په غرض دهغو په استخراج لاس پوری کړی او په عمومی مصالحو کښی یې ولګوی . اسلام دولت‌ته داحق ورکوی چه دثروت ټول مصادر په خپل لاس کښی و نیسی که چیرته عمومی مصالح یې مقتضی وی . لکه‌چه دمالیاتو داندازې په ټاکلو او وضع کولو کښی حق ورکوی چه دموضوع داهمیت اودخلکو داقتصادی سویی دملاحظې په‌اساس یو معینه اندازه وټاکی اوپه‌خلکو یې وضع کړی .

ج : ښکار : ښکار خواه دوچې وی او که دسیندونو دشرع له‌خوا په هغو کښی کوم‌مالیه ټاکل شوی نده خو سره له‌دې هم حکومت حق لری چه دعمومی مصالحو دایجاب په‌صورت کښی په‌هغو مالیه وضع کړی او ټاکلی حدود ورته وټاکی . اوهرڅه‌چه مرجان، مرغلرې اونورې دریابی ګانې اودانې دی په هغو کښی‌خو شرع شریفی‌هم خمس لازم کړی اوحکومت حق لری‌چه دعمومی مصالحو دایجاب په‌صورت کښی‌هغه په‌خپل لاس‌کښی ونیسی اوپه‌عمومی مصالحو کښی یې ولګوی .

د: ګمرکی محصولات اوتجارتی مالیات: داهغه مالیات‌دی‌چه په تجارتی اموالو ایښودل کیږی اودیوه هیوادله بنادر وا ولارو نه‌تیریږی . دغه مالیات هم‌بیت‌المال اودولت ته‌ورکول کیږی اوپه عمومی مصالحو کښی لګول کیږی .

ه : همدارنګه کومی مالیی‌چه په‌دکانونو ، ژرندو او داسی نورو ایښودل کیږی باید په‌عمومی‌مصالحو کښی ولګول شی .

و: اسلام حکومت‌ته اجازه ورکړې ده‌چه په‌پخوانیو مالیاتو دضرورت

او مصلحت په وخت کښې په دايمې توګه زيادت راولي او نسبت پخواته زيات ماليه وضع کړي لکه چه اجازه ورکوي چه د بودجې د عدم کفايت په صورت کښې په بډايانو ، سرمايه دارانو او نورو اقتصادي مؤسساتو په موقتي ډول داسې ماليات وضع کاندي چه د بودجې کسر تکافو او رفع کاندي او کوم وخت چه دغه ضرورت رفع شي نو بيايې لغو کړي. دغه ماليات ټول بايد بيت المال ته ورکړل شي او لکه د خراج په خير په عامو مصالحو کښې ولګول شي .

د دغو مالياتو په څنګ کښې اسلام څلور نوع ماليې نورې هم لري چه د زکوة په نامه يادېږي او هغه دادي :

اول - د زراعتي شيانو او ميوو زکوة - دوهم د څارويو زکوة - دريم د سرو او سپينو زرو زکوة - څلورم د تجارتي اموالو زکوة -

هر څه چه د غلو د حاصلاتو او ميوو زکوة ده هغه د حکمې د حاصل لسمه برخه ده چه اسلام په زمين دارو او باغدارانو مقرره کړې ده خو چه د سيلاوونو ، د ويالو او چينو د روانو او بو او بارانو نو په وسيله خړوبيږي او که دا رهټ په وسيله او لا په داسې نورو د شوارو وسايلو او به ورکوله نو شلمه برخه يې بايد زکوة ورکړشي او دغسې حکم ته عشري ويل کيږي ځکه چه لسمه برخه حاصل يې ترد ولت پورې اړه لري .

هر څه چه د څارويو زکوة ده نو د بودګانو په خاوند چه مسلمان او سي او بودګان يې معين نصاب ته ورسيږي او د کال په اکثرو او قاتو کښې په صحرا څړ کوي او پوره يو کال د ده په ملکيت کښې پرې تير شوي وي نو په دې لاندې ډول زکوة پرې واجبيږي :

د دغه زکوة مبلغ او اندازه د حيواناتو په اختلاف مومي او د هري نوع د پاره عليحده شمار او نصاب ټاکل کيږي . مثلاً اوښان چه تر پنځو کم وي زکوة نه پکښې واجبيږي او چه پنځو ته ورسيږي تر نهو پورې يو پسه پرې واجبيږي او له لسو نه تر څوار لسو پورې دوه پسونه بايد ورکړي . له پنځلسو نه تر نولسو پورې درې پسونه او له شلو نه تر څلور ويشتو پورې څلور پسونه کيږي او چه پنځه ويشتو ته ورسيدل بيا بايد يو دوه کلنه جونګۍ ورکړي او په همدې

توگه دزکوة اندازه درأس المال په‌زیادت‌زیاتیږی‌اوپه‌نوروبودگانو کښی‌هم‌په همدې ترتیب زکوة شته‌چه دفقه په‌کتابو کښی مفصل بحث پرې شوی‌دی .

همدارنگه په‌سرو اوسپینو زروکښی هم‌زکوة شته‌چه دسپینو زرو ر وپی له‌دوه سوونه کمې اوسره‌زر له‌شل مثقالونه کم‌نه وی اوپوره یو کال پر ی تیرشوی وی نوپه هغو کښی ربع‌عشر یعنی دلسمی څلورمه بر خه لاز میږ ی مثلاً په‌دوه سوو افغانیو کښی پنځه‌افغانی اوپه‌شلو طلاؤ کښی نیمه‌طلازکوة کیږی چه‌باید دولت اولایی نورو فقیرانوته ورکړ ی .

هرڅه‌چه دتجارت مالونه دی نودهغو په‌قیمت کښی‌هم ربع عشر (دلسمې

څلورمه)زکوة کیږی چه‌یوکـال‌پری تیرشوی‌وی‌اوقیمت یی‌تاکلی نـصاب ته (دو هسوه درهمو او لاشلو طلا وته )ورسیږی.

دزکوةدڅلور واړو انواعومصارف قرآن‌کریم‌په لاندی ډول‌بیان کړی‌دی

انما الصدقات‌للفقراءوالمساکین والعاملین علیها والمؤ لفةقلو بهـــم وفی‌الرقاب‌والغارمین وفی سبیل اللهوابن السبیل‌فریضة من‌ا لله والله‌علیم‌حکیم‌ط

«زکـــو ةباید فقیرانو،مساکینو،خرځ‌کیرانو،مؤلفة‌القلوبوته اودغلا ما نو د آزادولو په لارکښی اوقرضدارانو،مسافرانوتــه‌ا ودخدای پــه لا ره کـښی ورکـړشی.

دایـوه‌فریضه ده‌چه‌دخدای‌له لوری مقرره شـوی‌ده اوخـدای تعالـی‌دانا وباحکمته‌دی».

فقیردفقه په اصطلاح کښی هغه‌چاته ویل کیږی‌چه‌یوڅه‌مال ولری‌اودغنا شـرعی‌نصاب‌ته ونه‌رسیږی.اوعاملین‌چه‌په‌قرآن‌کښی یاد شوی‌دی‌عبارت‌له‌هغه چانه دی چه‌د زکاتونو اومالیاتو دراټولولوډپاره‌دحکو مت له خوا مقـرر شوی‌وی.

اومـؤلفة القلوب چه‌دزکوةمصرف ګڼل شوی‌درې‌صنفه‌دی‌یوه ډ لههـغه کـسان ؤ چه‌حضرت پیغمبربه دهغوی‌دلجویی‌کړه‌ترڅوچه‌دوی‌اودهغوی اقوام ایـمان راوړی .

یـوه‌ډله هغه وه چه په‌خپل اسلام باندی باقی پاتی شی یوځه زکاتونه بـه ورکول کیدل اوبله‌ډله‌هغه وه‌چه‌له شرڅخه‌یی دمامون پاتی کیدوله‌پاره بـه‌یی زکاتونه ورکول اوداداسلام په‌ابتداء کښې وه اوکوم وخت چه اسلا م قـوت و مونده نو بیا دغه حکم لغوشو اواوس‌دزکات په‌مصارفو کښې‌نه گڼل کـیږی .

اوفی الر قاب چه راغلی معنی یی‌داده‌چه‌یوځه‌زکاتونه. باید هغوغلامانو تـه ورکړشـی‌چه‌دخپل حریت دپاره یی‌خپلو بادارانوته‌ورکړی‌اوله‌مر یینتوبه و وزی او له فی سبیل‌الله څخه مراد غازیان اوحاجیان اودعلم طالبان دی چه‌په لاره اوسفر کښې کم‌خرڅه شی .

دغـه خلك که‌څه‌هم په‌خپلو کورونو کښې هرڅه ولری بیاهم دز کا ت مصـرف گڼل کیږی .

ابن سبیل‌هغه څوك‌بلل کیږی چه‌په‌خپل کور کښې ثروت ولری‌اوپه‌کوم ځـای کښې‌چه وی‌څه‌نه‌لری .

دغه ټول‌دزکات مصارف دی اوهریوه ته چه ور کړ شودسـړ ی غـا ړی پرې‌خلا صیږ ی .

پـه زکاتونو کښې کلی قانون‌دادی چه‌بیت‌المال ته‌ورکړل شی ځکه چه بیـت‌المال یی‌په‌عامومصالحوکښې صرفوی اودهغو نتیجه ترقردی مصـالحـو بنـه ده .

کـه څه‌هم خپله زکوة ورکوونکی ته جا یزه ده چه خپل زکوة په خپله خوبنـه چاته چه‌یی زړه شی ورکړی خودزکـوة‌په‌ورکړه کښې بهتره داده‌چه دخپل کلی او خپل ښار مستحقینوتـه‌ورکـړشی که‌څـه هم‌حـکومـت تـه جایزه ده‌چـه‌دعـا مـه مـصا لـحـو دا یجاب له مخې زکا تو نه ولگوی .

دا سلام‌دین زکوة داسلام‌له ډیروهمو ارکانوځنی گڼلی‌او تل‌یـی دایمان اولمانځه په‌څنگ کښې‌ذکرکړی‌دی. ځکه‌چه‌زکوة دیوه‌ملت داقتصادی توازن په‌ساتلو کښې‌مهم‌رول لوبوی‌اوپه یوه‌ملت کښې داقتصادی توازن موجو د یـ ت

دهغه ملت دننه کې مرغی له عواملو څخه ګڼل کېږي. دغه وضع دخلکو ترمنځ تفاوت له منځه بیايي او ټول طبقات یو بل ته سره نژدې کوي. د مسلمانانو ترمنځ اجتماعي عدالت قایموي او یو بل ته دخیر او معاونت دلاس ورکونې روحیه قوي کوي. داهم دزکوة په باره کښې داسلام له قوي اهتمام څخه ګڼل کېږي چه حضرت ابوبکر له هغو قبایلو سره جنګ جایز وګاڼه او ورسره وې کړ کوموچه دحضرت پیغمبر له رحلت نه وروسته دزکوة له ورکړې څخه منع راوړې وه او په دغه کار مرتدین وګڼل شول او په دې باره کښې ئې خپله مشهوره وینا وکړه «والله لومنعوني عقال بعیر کانوا یعطونه رسول الله لحاربتهم علیه حتی یؤدوه» یعنې قسم په خدای دی چه که دغه خلك داوښ د پښو د تړلو یوه ګونه هم له ماسته نه کړي چه رسول الله (ص) ته ئې ورکوله زه به له دوی سره تر هغو جنګېږم ترڅو چه هغه ګونه اداکاندي.

په دغه مورد کښې ډیروا صحابو له ده سره مخالفت وکړ او داسې دلایل به یې ویل چه وخت نازك دی ځکه چه حضرت پیغمبر (ص) نوی رحلت فرمایلی او ستاسې دحکومت وضع لاتراو سه پورې مستقره شوې نه ده نو مبادا ستاسې دغه اقدام له یوه بدعکس العمل سره مخامخ نشي او داسلام په زیان تمام نشي. ده هم دغه دلیل خپل ذلیل وګاڼه او په جرأت او رشادت یې وویل چه که له یوې ګونې یوې قبیلې ته تېر شم نور قبایل به ډېر شیان ستانه کړي او داسلام نظام به برهم او درهم شي.

ډیر دلایل یې ورسره وویل او ده په خپله مفکوره اصرار وکړ ترڅو چه ټول دده رأیې ته راوګرځېدل او په خپل دغه حکیمانه اقدام یې هغه لویه فتنه له منځه یوړه چه د حضرت پیغمبر له وفات نه وروسته یې اسلام او داسلام قوي مبادي او ارکان تهدیدول.

اود دې د پاره چه سرمایې راکدې پاتې نشي هرڅوك مجبور دی چه خپلې سرمایې په کار واچوي او ګټه پرې وکړي ترڅو چه یې زکوة له منځه یونشي وړی. ځکه که سرمایه راکده هم پرته وي اسلام حکم کړی دی چه خپل مقرر زکوة ترې ورکاندې او په دې صورت کښې حتمي ده چه په څلو ېښتو کلو کښې ټوله سرمایه له منځه لاړه شي نوله دې کبله هرڅوك مجبوردی چه خپله سرمایه

په کــار واچوی او گټه پرې وکړي ترڅو چه له یوې خوا خپله سر مایه له لاسه ورنکړي اوله بلې خوا دخپل مملکت دثروت معیارلوړ بو ځـی

٤ : همد ارنګه اسلام په بډایانو باندې په ځینو موسمونو کښې چه هر کال مکرر کیـږي ځینې صدقات لازم کړي دي چه بایدبـې وزلواو مسا کینو ته یـې ورکړي چه دهغو مهم مثالونه په لاندې ډول دي.

( الف) سرسایه: داصدقه په هرمسلمان چه مکلف وي اودنصاب خاوند اوسي لازمه ده چه دځان او دخپلو ماشومانو له خوا یې دکمکي اختر په ورځ ادا کــانـدي او محتاجانو ته یـې ورکړي. په دې ترتیب چه د سړي په سر باید نیمه پیمانه غنم او لامیزاو یا یوه پیمانه وربشې اولاخرما چه هره پیمانه ئې تقریباً دکابل نیم من کیږي ورکړي او لایې قیمت ورکړي .

دغه صدقه واجبه ده چه تقریباً فرضو ته نژدې حکم لري او که دیـوه ښــار اوسیدونکي خپل وجایب پر ځای کاندي نو غالباً چه څوك به داسې بې وزلې پا تې نشي چه له لوږي و مري او لاد اقتصاد دعدم توازن په اثر یې نظام مختل شي .

(ب) قربانۍ کانې او لاهغه هدایاوې دي چه حاجیان او نور مسلمانان یې دلوې اختر په ورځو کښې حلا لوي په دغه باره کښې شرعي حکم دادي چه هم یې دوی وخوري اوهم یې خپلو همسایه گانو اوخپلوانو اومسکینانو ته ورکړ ي.

لکه چه قرآن کریم فرمایي «فکلوا منها واطعموا البا ئس ا لفقیر » یعنې له هغو څخه وخوریء او په بدحالو فقیرانو باندې یې هم وخوری ء .

(٥) ځینې هغه کفارتونه دي چه دمسلمانانو دخطا په مقابل کښـې په هغو ایښودل شوي اوفقیرانو ته یې ورکړه لازمه شوې ده .

له دغې جملې څخه یوه هم دلوړې کـفاره ده چه قـرآن کر یـم د ا ســې ټاکلې ده.

«فکفارته اطعام عشرة مساکین من اوسط ماتطعمون اهلیکم او کسو تهم اوتحریر رقبة» یعنې دقسم او لوړې کفاره داده چه لسو تنو فقیرانو ته متوسط خوراك چه تاسې یې خوری ء ورکړی ء اولاجامې ورکړيء اولایو غلا م آزاد کړ ی ء »

همدارنگه په روژه خواره باندی هم دغی کفاری ته ورته کفاره لازمه ده او باید غلام آزاد کړی او که نه وی نو شپیتو تنو فقیرانو ته دوډی ورکړی همدارنگه شیخ فانی او هغه مریض چه دجوړیدو امیدیی نه وی او داسی نور چه روژه نشی نیولی د هری روژی په مقابل کښی باید یوه مسکین ته دوډی ورکړی. په دغو ټولو کفارو او فدیو کښی دمساکینو دحال رعایت شوی او بایده دی چه اصل شی او لایی قیمت ورکړی .

همدارنگه عیناً همدغه کفاره چه په روژه کښی وه په ظهار کښی هم لازمه ده او ظهار دی ته وایی چه یو سړی دخپلی ښځی یو اندام چه کتل ورته حرام وی له خپلی مور سره تشبیه کاندی لکه چه ورته ووایی ستاخیټه په ما باندی داسی ده لکه زمـــا دمورخیټه . نو په دغه صورت کښی که دغه سړی وغواړی چه خپلی ښځی ته رجوع وکړی نو پری لازم دی چه هغه کفاره ورکړی چه په دی آیت شریف کښی ټاکل شوی ده «والذین یظاهرون من نسائهم ثم یعـودون لـمـا قـالو فتحریر رقبة من قبل ان یتماسا ، ذالکم توعظون به. والله بما تعملو ن خبیـر. فمن لم یجد فصیام شهرین متتابعین من قبل ان یتماسا ، فمن لم یستطع فاطعام ستین مسکیناً ط»

یعنی هغه کسان چه له خپلو ښځو سره ظهار کوی او بیاله خپلو خـبرو نه گرځی نو پخواله هغه چه له خپلو ښځو سره یوځای شی باید یو مریـی آ ز ا د کاندی. په دغه باره کښی پاک خدای تاسی ته پند درکوی او خدای ستاسو په کړو وړو خبردی او که چا غلام پیدانکړ نو پخوا له یوځای کیدو نه دی دوه میاشتی سر په سر رو ژ ه ونیسی او که دروژی توان یـی نه درلود باید شپیتو تنو "مسکینانو ته خواړه ورکړی. همدارنگه اسلام دغسی فدیی دحج په بعضی شئو نا تو کښی لازمی کړی دی لکه چه قرآن کریم فر مایی .

«فمن کان منکم مریضاً او به اذی من رأسه ففد یة من صیام او صدقة ا و نسک فاذا امنتم فمن تمتع بالعمرة الی الحج فمااستیسر من الهدی» یعنی نو څوک چه له تاسی څخه ناجوړه شی او لایی پـه سر کښی څه زخم او لابل تکلیف پیداشی او د سرخریلو ته اړشی نو باك نشته چه سرو خریی او فدیه ورکړی په د ی تر تیـ ب

چه‌لادری ورځې روژه ونیسي اولاشپږ مسکینانو ته خواړه و رکړی او لا یو مړیی ا ویابزی پسه خیرات کاندی او که له‌هرډول مرض اوخوف نه ما مون وی‌اوحج اوعمره‌یې دواړه کړی ۇ پرده لازمه‌ده چه‌یایومړیی پسه اولا یو وزیې ما ل او لاد اوښ‌اولاغوایی او مه‌برخه قربانی کړی .

٦ ـ :اسلام په ټولو بچایانو دالازمه کړی ده چه‌خپلوخپلو ا نو ته‌چه فقیرا ن اوسی اوله کاره لویدلی‌وی دمرستی اومعاونت لاس‌ورکړی اودیوه کلی په‌ټولو اوسیدونکو یی واجب کړی‌ده چه‌یودبل معاون اومددگار اوسی اویوله‌بل سره دتعاون، تساند-تکافل‌اوتعاضدپه‌حال‌ژوندوکړی.

غنی یـی‌دفقیرلاس‌نیوی وکړی اوماړه‌یی‌دوږودلوږې مخ‌نیوی‌وکړی. حتی ځینی‌فقها په‌دې عقیده‌دی چه‌که‌په‌یوه ښار کښی‌یوسړی له‌لوږی‌مړشو ددغه‌ښار له ټولوا وشپدونکو نه‌بایدیت واخستل‌شی اوټول‌داسې وگڼل‌شی لکه‌چه دده په مرگ کښی‌شریکان‌دی. په‌همدې‌اساس‌قرآن‌کریم په‌متعددو ځایوکښـی دچـم گاو نډ دحقوقودساتنې اوله‌خپلو گاونډیانو سره‌دښه‌سلوك کولو امرکړی دی اود اسې فر مایـی « واعبدوالله‌ولاتشرکوا به‌شیأوبالوالدین‌احسانأوبذی‌القربی والیتامی و المسا کین و الجار ذی القـر بی والجا ر الجنب» یعنی دخدای عبادت‌وکړی‌اوبل‌هیڅ‌شی‌مه‌ورسره شریکوی‌اوله‌موراوپلار او نوروخـپلوا نـو او یتیمانو او مساکینو اوله هغو گاونډ یانو سره نیکی ا و ښیگـڼه وکـړی کوم‌چه‌له‌تاسې سره خپلوی‌لری او له هغوگاونډیانو سره چه هیڅ‌خپلوی نـه در سره لـری . هـمدا رنگه حضرت پیغمبر (ص) په ډېـر و احا د یثو کښی دگاونډیو دحقوقو دمراعات توصیه کړې اوداسې فرمایی « لیس منامن بات شبعا ن وجاره جائع » هغه څوك زما په امت کښی حسا بیدی نشی چه دی‌په مړه گیډه شپه تیروی . او گـاونډ ی یی و ږ ی وی . په یوه روایت کښی را غلی دی چه دعبدالله ابن عباس (رض) پـه نـز د یو سړی او یو هلـك ۇ چه پسه یې ورته حلا لاۇ نو ابن عباس (رض) ورته وفرمایل .

« یا غلام ! لاتنس جارنا الیهودی » یعنی ای هلکیه ! پام کوه چه زمونږ جهودی گاونډی هېرنکړې » یعنی دهغه برخه هم باید ورکړې . دغه جمله یې دوهم اودریم وار تکرار کړه . په دغه اثنا کښې دغه سړی عبدالله ابن عباس (رض) ته مخ را واړاؤاو ورته یې وویل چه څومره ډېـر وا یې اوپه څه یې دومره ډېرسپا رښتن کوی ؟ ابن عباس (رض) ورته وویل چه « والله ان رسول الله (ص) مازال یوصینا بالجا رحتی ظننت انه سیورثه » یعنی قسم دی چه رسول الله (ص) به تردې اندازې تل مونږ ته دگاونډی په باره کښې توصیه اوسپارښت کاؤ چه ما به ویل چه زړه حضرت پیغمبر به گاونډی میراث خور وگرځوی .

۷ ـ: اسلام په بیت المال باندې لازمه کړې ده چه له کار لوېدلو خلکو سره لکه شل اوشوټ اوبوډاگان شول مرسته وکړی او دهغوی ضروری احتیاجات رفع کړی او همدارنگه دهغی ښځی ضروریات ورکړی چـه د نفقې او نورو ضروریاتو متکفل ونه لری او پدې باره کښې دکافر او مسلمان ترمنځ په کوم فرق قایل نه دی او باید هرڅوک چه وی دغه مرسته ورسره وکړی . لکه چه حضرت عمر په خپله دوره کښې له یوه ذمی سره وکړه .

. قصه داسې وه چه یوه ورځ حضرت عمر یوسپین ږیری بوډا کافر ذمی په لار کښې ولید چه سوال کوی او په دې توگه خپلې اړتیاوې پوره کوی . نو حضرت عمر داسلام له بیت المال څخه هغه ته نفقه مقرره کړه او بیا یې خپله مشهوره خبره ورته وکړه چه « دا انصاف نه دی چه ترڅو چه ته ځوان وې اوکـار اوکسب دې کړی شو مونږ جـزیه درڅخه اخیسته او اوس چه زوړ شوی اوله کاره لوېدلی یـی همداسې دې پرېږدو چه په در ویزه شپې ورځی تېرې کړې » .

۸ ـ: داسلام دین حکومت ته روا کړې ده چه دعامه اموالو په توزیع او تقسیم کښې هغه رویه غوره کړی چه داقتصادی توازن متکفله وی او د ټولو طبقاتو ترمنځ توازن راولی که څه هم دې ته منجره شی چه ځینې دغسې اموال یوې خاصې طبقې ته ورکړی او بلې ته نه . ددغې نهکې رو یـې اساس خپله حضرت رسول الله (ص) کېښود او دغه حکیمانه رویه یـې د خدای پـه حکم

په‌خپله عملی کړه: کومه ولجه چه مسلمانانو له‌بنی نضیرو نه‌کړې وه هغه‌یې ټوله مهاجرینو او د ووتنو مسکینو انصارو ته ورکړه فقط . که څه هم پدغه فتحه او ولجه کښی انصار هم شامل ؤ مگر دوی ته یې برخه ترې ورنکړه ترڅوچه ددغو دوو طبقودثروت ترمنځ تقارب اونژدې والی راشی اوترېوې اندازې پورې اقتصادی توازن بر قرار شی . لکه چه قـرآن کریم فرمایی « ماآفاء الله علی‌رسوله من‌اهل‌القریٰ فلله وللرسول ولذی القربی و الیتامی والمساکین وابن‌السبیل ، کی لایکون دولـة بین الاغنیاء منکم » هغه مال‌چه دفیئی په‌صورت د پیغمبر اویا له هغه نه وروسته دامام په لاس ورشی په هغه کښی دخدای اورسول او درسول دخپلوانو، یتیمانو، مساکینو، مسافرو برخه شته اوباید په همدې ترتیب تقسیم‌اوتوزیع‌شی ترڅو چه یوازې ددولت‌مندانو او بډایانو په‌لاس ورنشی او اقتصادی توازن مختل نشی . او دلته له اغنیاؤ څخه مراد انصا ر د ی .

بل‌ځای فرمایی «وماآتاکم الرسول فخذوه ومانهاکم‌عنه‌فانتهوا واتقو الله‌ان‌الله شدید‌العقاب. للفقراء‌المها جرین‌الذین اخرجوامن دیارهم‌و اموالهم یبتغون فضلامن‌الله‌ورضوانا‌ًوینصرون‌الله ورسوله‌واولئك‌هم‌الصادقون»یعنی‌څه‌شی‌چه‌پیغمبر درکوی هغه‌واخلیء اوله‌څه‌شی‌چه‌مومنع کوی‌له‌هغه‌نه‌منع‌شـیءاو‌ـه‌خـدای نـه وویریږیءاودپیغمبردستورمطابق‌رفتاروکړیءبې‌شکه‌چه‌دخدای‌عذاب‌ډیرسخت دی.دولجومالونه دهغومهاجرو فقیرانودی چه‌له‌خپلو کورونواو مالونو نه شړل شوی‌او دخپل‌خدای فضل‌اورضا غواړی‌او دخدای‌او رسو ل مر سته کو ی. دغه ډله‌خلك ریښتینی‌مومنان‌دی.

۹. له‌دې‌نه علاوه‌داسلام دین‌تل‌بډایانو‌ته‌توصیه‌کوی‌چه دفقیرانولاس نیوی وکړی‌او په‌خپل‌خیر اوخیرات دهغوی‌زړونه په لاس‌راولی اوخپل‌زیا تی‌مالونه هغوی‌ته ور کړ ی.

دغه‌پول سخااوخیراتو نه‌یـی‌دډیرواجرونو او ثوابونو وړبللی اودمالونو دخزانه کولواونه‌خرڅولو کاریې د سختوگناوله‌جملی‌څخه‌گڼلی‌اودغه‌ډله‌خلك‌یې دقیامت دورځی‌په سخت‌عذاب وېرولی‌دی. کوم‌قرآنی آیتو نه چه‌په دغه باره

کښې نازل شوی‌زښت ډیردی‌او هیڅ‌یوسورت نه‌شته‌چه‌دد غې مو ضوع ذ کر به پکښې‌شوی نه‌وی‌له‌دې جملې‌څخه دغه‌آیتو نه‌دی. «لیس البران تولوا وجوهکم قبل‌المشرق‌والمغرب ولکن‌البرمن آمن‌بالله والیوم‌الاخرو الملا ئکة والکتا ب والنبیین، وآتی‌المال‌علی‌حبه‌ذوی القربی والیتامی و المساکین وابن‌اسبیل والسا ئلین‌وفی‌الرقاب» یعنی‌یوازې دانېکی‌نه‌ده‌چه خپل‌مخونه دختیځ‌اولویدیځ په‌لورواړوی‌ء مګرحقیقې نېکوکار اونېکی داده چه په‌خدای، دقیامت په ورځ، په‌ملایکو، کتابونو اوپیغمبرانو ایمان راوړی‌ءاوهغه حق و ګنی‌ءاو دخدای‌په مینه‌اورضا خپل‌مالونه خپلو خپلوانو، یتیمانو مسا کینو، مسافرانو اوسا ئلانو ته‌ورکړی اودمریانو دخلاصون اودحریت په‌لار کښې یی‌ولګوی‌ء.

«یسئلونک ماذا ینفقون؟قل‌ما انفقتم‌من‌خیر فللوالدین والا قربین‌والیتامی والمساکین وابن‌اسبیل، وماتفعلوامن خیرفان الله‌به‌علیم» یعنی دوی له تاڅخه پوښتنه کوی‌چه دوی خپل خیرا تونه څنګه او چا ته ورکړی؟ نو ته ورته ووایه‌چه ستاسې‌ډیر ښه‌خیرات هغه‌دی‌چه‌خپلووالدینو، خپلوانو، یتیمانو، مساکینو، مسافرانو ته‌یی ورکړی‌ء. اوکوم‌دخیر کارچه‌تاسې‌یې کوی‌ء په‌هغه باندې پاک‌خدای پوره‌علم لری. «یاایها‌الذین‌امنواانفقوا مما رز قنا کم من قبل‌ان یأتی‌یوم لابیع فیه ولا خلة ولاشفاعة» یعنی اې‌مومنانو! کوم‌مالونه چه‌پاک‌خدای تاسې‌ته درکړی‌دی پخواله هغې‌چه مړه‌شی‌ء اودقیا مت هغه ورځ درباندې درشی‌چه نه‌به‌په‌هغه ورځ کښې خریداو فروش‌وی او نه‌دنیوی مال او متاع دچا په‌ښه‌خوری او نه دوستی او سپارښتن، له هغې‌جملې‌څخه‌یوڅه مالونه دخدای په‌لارکښې ولګوی‌ء اوخرڅ‌یی‌کړی‌ء

«مثل‌الذین‌ینفقون اموالهم فی‌سبیل الله کمثل‌حبة‌انبتت سبع سنا بل فی کل سنبلة مائة حبة، والله‌یضاعف لمن یشا ء والله واسع‌علیم،الذین‌ینفقون ا موالهم فی‌سبیل الله ثم لایتبعون ما انفقوامناًولا اذ ی‌لهم‌اجرهم عندربهم و لاخوف‌علیهم‌ولاهم‌یحزنون»

یعنی دهغوکسانو مثال‌چه‌خپل مالونه دخدای‌په لارکښې نفقه کوی‌هغې

دانی ته ورته دی چه اوه‌وزی زرغون کاندی او په هرو زی کښی بی‌سل دا نی اوسی(همدارنگه دغوخلکوته‌یوپه اوه‌سوه‌اجرورکول کیږی)اوچاته‌چه‌د خدا ی رضاوشی‌تردی‌هم‌دوه‌چنده‌اجرورکوی اودخدای رحمت تردی‌هم‌لوی‌دی‌اودخپلو بندگانو دنیت په اندازه هر چاته ثواب ور کوی .

هغه کسان چه‌خپل ما لونه دخدای‌په‌لار کښی صرفوی‌اوبیاپه چااحسان نه‌باروی اونه‌یی دتکلیف باعث گرځی دهغوی اجراوثواب‌ددوی‌دپر وردگار په‌نزدمقرردی. نه به له ډار سره مخامخ کیږی او نه‌به‌دغم سره.

«ومثل‌الذین ینفقون‌اموالهم ابتغاء مرضات الله‌وتثبیتاً‌من‌انفسهم کمثل‌جنة بربوة‌اصابها وابل فأتت اکلها ضعفین‌فان لم‌یصبها وابل‌فطل ،والله بماتعملون بصیر»دهغو کسانو مثال چه‌دزړه‌په اطمینان‌او‌کامله ډاډ گیرنه خپل ما لونه دخدای‌درضا په‌غرض لگوی هغه باغ‌ته‌ورته دی چه‌په وه لوړه غونډۍ واقع وی اوښه تیزباران پری‌وشی اودوه چنده‌بار و نیسی اوکه سخت با ران و ر ونه‌ر سیږی‌نوشبنم(پرخه)هم ورته کافی اوسی او خدای‌ستاسی په‌کړ وبا ندی بینادی .

«یاایهاالذین امنو اانفقوا من طیبات ماکسبتم‌ومماالخرجنالکم‌من الارض ولاتیمموا‌الخبیث منه تنفقون ولستم باخذیه الاان‌تغمضوافیه .واعلموا ان‌الله‌غنی حمید» یعنی ای‌مومنانو ! کوم مالونه‌چه‌تاسی په‌خپل کسب گټلی او ولا خد ا ی له‌ځمکی‌نه‌تاسی‌ته‌راویستلی‌دی: هغوله جملی‌ځخه‌یوڅه‌پاک‌اوحلال‌مالو نه‌نو رو ته ورکړی‌ء‌اودردی‌مالونوورکړی‌ته‌چه‌تاسی‌یی‌ناخلی‌مگرداچه‌سترگی‌پری‌پټی‌کړی‌ء قصدمکوی یعنی له سترگولوبدلی مالونه دخدا ی په‌لار کښی مه و رکو ی‌ء اوپدی پوه شیء چه‌خدای‌ستاسی‌ورکړی ته‌څــه اړه نه‌اری او غنی بی نیا ز ه اودستاینی وړدی .

«و ما انفقتم من نفقةاو نذرتم‌من نذرفان الله یعلمه وماللظالمین‌من‌انصار ان‌تبدوا‌الصدقات فنعماهی وان تخفو ها وتؤتوها الفقراء فهو خیر لکم ویکفر عنکم سیأتکم ،والله‌بما تعملون خبیر»یعنی کوم مال چه تاسی‌خرڅوی‌ء‌اوکوم نذرچه په‌خپلو غاړو اخلی‌ء‌په هغه باندی خدای پوره علم‌لری او د بنده د نیت

لەمخی لەهغه سره معامله کوی‌اوهغه ظالمان‌چه‌په‌خپلو نذرونو وفانکوی کوم مددگار نه‌لری که تاسی خپل خیراتونه ښکاره ورکړی ‌ء نو داښه کا ر د ی او که پټ‌یی ورکړی نو بهتره‌ده‌اوپاك‌خدای‌به‌ستاسی گناوې لرې کړی اوپا ك خدای ستاسی په اعمالوخبردی ـ‌«الذین‌ینفقون‌اموالهم‌باللیـل‌و النهار سـراً وعلانیةفلهم اجر هم عندربهم ولاخوف‌علیهم‌ولاهم‌یحزنون» یعنی‌هغه کسان‌چه خپل مالونه په شپه اوورځ ‌پټه‌اوښـکاره‌دخـدای پـه لار کـښی لـگو ی ، اوخیراتونه ورکوی هغوی دخپل پروردگار په‌نزد اجرلری اوله هیڅ ډار او اضطراب سره به‌مخامخ کـیږی نه‌اونه‌به غمگین کیږی. «لن‌تنالواالبر حتی تنفقوا مماتحبون، وما تنفقوامن‌شیء فان‌الله به‌علیم» یعنی تاسې نیکی موندلی نشی‌ء ترڅوچه خپل ښه‌اوپه زړه‌پورې مالونه خیرات نـکړیء. او کـوم‌شی چه تاسی دخدای په‌لارکښی لگوی‌ءخدای په‌هغه پوره علم لری .

«واعبدوا‌الله‌ولاتشرکوا‌به‌شیأً وبالوالدین احسانا وبذی القربی والیتامی والمساکین والجارذی القربی والجارالجنب والصاحب بالجنب و ابن السبیل وماملکت ایمانکم ان‌الله‌لایحب‌من‌کان مختالاً فخورا ، الذین‌یبخلون ویأمرون الناس بالبخل ویـکـتمون ماآتاهم‌الله من‌فضله ، واعتدنا‌للکافرین عذابا‌مهیناً» یعنی اویوازی دیوه خدای عبادت وکړیءاوبل هیڅ‌شی لهغه سره په عبادت کښی شریـکوی‌ءمه اوله‌مور اوپـلار ، له‌خپلوانو ، له یتیمانو ، محتاجانـو ، خپلوانو گاونډیانو اوپردیو گاونډیانو ، له‌خپلو ملـگرو ، مسافرو اوخپلو مریانو سره‌ښیگـڼې وکړیء ـ په‌رښتیا چه‌پاك‌خدای متـکبران اوفخرکوونکی نه‌خوښوی . هغه‌کسان چه‌بخل کوی اونوروته هم‌په‌بخل اوبخیلۍ امر کـوی اوکوم‌شې چه‌عبارت له‌علم اوپو هې څخه دی‌اوخدای ورکړی‌هغه‌پټوی اودهغه په‌مقتضا رفتار نکوی اونه‌یی چاته گـټه رسیږی کـافران دی او کافرانوته خدای رسوا کوونکی عذاب مقرر کړی دی.

«والذین یـکنزون الذهب‌والفضة ولاینفقونها فی‌سبیل‌الله‌فبشرهم بعذاب‌الیم، یوم‌یحمی‌علیها فی‌نارجهنم فتـکوی بهاجباههم وجنوبهم وظهورهم‌هذاماکنزتم لانفسکم ، فذوقوا ماکـنتم تـکـنزون» یعنی هغه کسان چه‌سره اوسپین زر

دذخیره کوی اودخدای په لار کښې یې نه لگوی نو هغوی ته په ډېر دردناك عذاب
زیری ورکړه. یاده کړه هغه ورځ چه په دغو اموالو د دوزخ اور ونه بل او ډېر سره
شی نو بیا به د دوی وچوپلی ، اړخونه او شاوې پرې وداغل شی او بیا به ورته وویل شی
چه دادهغه کار جزاء ده چه تاسی به مالونه دخپل ځان دپاره ذخیره کول او د
خدای په لار کښې به مو نه لگول . نو اوس دخپلو مالونو دذخیره کولو جزاوې
وڅـکیء .

که مونږ قرآنی تعلیماتو ته په ځیرشو نو دابه راته ثابته شی چه قرآن کریم
نه یوازې دغو خیراتونو ته ښه ویلی دی بلکه دغه ډول صدقات یې دفقیرانو حق
گڼلی او داسې یې فرمایلی دی. «والذین فی اموالهم حق معلوم للسائل والمحروم»
یعنی رښتینی مؤمنان هغه دی چه په خپلو مالونو کښې یې سائلان او محرومان
معلوم او ټاکلی حق لری. بل ځای فـرمایی «وآت ذالقـربی حقه والمسکین
وابن السبیل ذلك خیر للذین یریدون وجه الله واولئك هم المفلحون» یعنی او خپلو
خپلوانو ، مساکینو او مسافرو ته خپل خیر ورکړیء ، ځکه چه دخدای درضا غوښتونکی
وی دا بهترینه وسیله ده چه په دې وسیله یې سړی گڼلی شی او دغه گروه خلك
چه دخپلوانو ، مسکینانو او مسافرانو حقوق ورکوی حقیقی رستگار ان دی .

په قرآن کښې ډېر آیاتونه شته چه په دې په صراحت دلالت کوی چه د ثروتونو
په تملك کښې داسلام نظر به داده چه د ثروت خاوند هغه په مستحقینو وویشی
او په واقع کښې ثـروت مند پـه خپل ثـروت بانـدی د خـدای
له لوری خلیفه گرځول شویدی چه هغه د خدای په لار کښې ولگوی
لکه چه په همدې مورد کښې فرمایی «آمنوا بالله ورسوله وانفقوا مما جعلکم
مستخلفین فیه ، فالذین آمنوا منکم وانفقوا لهم اجر کبیر» یعنی په خدای
اورسول یې ایمان راوړیء او له هغو مالونو یو څه دخدای په لار کښې نفقه کړیء
کوم چه پاك خدای تاسی دهغو خلیفه گان گرځولی یاستیء. نو هغه کسان چه په
خدای ایمان راوړی او خپل مالونه نفقه کوی دوی لـره غټ اجر شته دی .

۱۰- بلکه کـه مونږ اسلام ته ځیر شو و به گـورو چه اسلام ټولو
خلکو ته محبوبه کړی ده چه له خپلو حوایجو نه زیات مالونه دخدای په لار کښې

ولګوی . له ابوذرغفاری (رض) روایت شوی‌دی‌چه وایی « خرج رسول‌الله (ص) یوماً نحواحد وانا معه فقال : یا آباذر! فقلت نعم یارسول الله بابی انت‌وامی! قال : مایسرنی ان لی‌مثل احد انفقه فی‌سبیل‌الله اموت واترك منه قیراطین قلت : اوقنطارین یا رسول الله (ص) ! قال : بل قیراطین » یعنی ابوذروایی چه‌یوه‌ورځ حضرت رسول الله (ص) داحد په لور ( چه دیوه لوی غره نوم‌دی ) ووت او زه هم ورسره وم نوماته یی غږ کړ چه ای اباذره ! نوما ور ته وویل چه بلې مور اوپلار می له تا ځارشه! نو ده راته وویل چه که داحد دغره قدر مال می درلودی او هغه می ټول دخدای په‌لار کښی خیرات کړی وای او یوا زې دوه قیراطه دهغه له جملې څخه زما دمرګ‌نه وروسته پاتې شوی وای نوزه به غمګین وم ماورته وویل چه‌مطلب دې قنطار ین یعنی‌ډیر ما ل دی ؟ ده وویل چه نه بلکه قیرا طین یعنی ډیر لږ شی دی - یعنی زه به هغه وخت خوشاله شوی وای چه داحد دغره په اندازه می سره زردرلودی او هغه می دا سې دخدای په لار کښی لګولی وا ی چه ددوو دانو قدرته هم زما له مرګ نه وروسته پا تې شوی نه وا ی .

له همدې‌کبله ؤ چه حضرت ابوذر غفاری (رض) به دحضرت‌عثمان (رض) په دوره کښی بډا یان رابلل اونصیحت به یی ورته‌کاؤ چه له‌خپلوحاجتونو نه زیات مالونه دخدای په لارکښی ولګوی او له فقیرانو ، محتاجانو اوبې‌وزلو سره کـو مك او مرسته وکړیء . او هغوی‌به یی له تنعم ، ترف او سرف او د مالونو له ذ خیره کولو څخه منع کول او توصیه به یی کوله چه دخپلو مالو نو له کبله په فقیرانو باندې کلان‌کاری او لوبی ونکړی او په برابره ستر ګه ورته وګوری .

دابو ذر په دعوت کښی له یوه ټکی نه پرته بل کوم افراط او مبالغه وجود نلری او هغه هم دادی چه ده به په‌اغنیاؤ باند ې واجبو له چه له‌خپلو حاجاتو زیات ټول مالونه دمحتاجانو داړتیاو دمخنیوی دپاره و لګوی په‌داسې حا ل کښی چه اسلام دغه کاربشه ګڼلی او واجب کړې یـې نه دی لکه چه مخ کښی تیر ه شوه . البته اسلام په ټاکلې‌اندازه زکاتونه ، صدقې‌اومالیات

دخلکو په غاړه ایښې او پرې لازم کړې یې دی نه داچه خپل ټول هغه مالونه
چه له حاجت نه یې زیات اوسی نفقه کړی ، خو دومره خبره ده چه د غه
باید مجرد ایمان او مسلمانی وګڼله شي اوکوم منزلت او لوړ مقام چه سخیانو
او هغو کسانوته مقرر دی چه خپل ټول ما لونه ( چه له اصلی حا جت نه یی
زیات اوسی ) دخپل خدای په لار کښی لګوی هغه لمړی ډلې ته میسر نه دی
د غه کسان دخدای قرب او نزدیکت ګټی او د خپلې سخا اوښیګڼې په برکت
لوړو مرتبوته رسیږی او هغه مقام ته رسیږی دکوم دپاره چه ابو ذ رغفاری
خلک ترغیبول او لمسول یې . دابوذر له دغو تبلیغاتو نه ځینو دغرض خاوندانو
سوء تعبیر کړی او نور غیر مطلوب نتایج یې تر ې اخیستی دی . پـدا سی
حال کښی چه اصلا دغه تبلیغ دانسانی عواطفو په راویښولو او دانسانی کرامت
د ساتلو په غرض شوی دی .

د غه تعلیمات دثروت خاوندان خیر سخا او لــه فقیرانو سره مرستې
ته را بـو لـی ا و د ښـو کـا ر و نـو د پـا ر ه یـې تحر یـکو ی
دغه تعلیمات دفردی تملك داحترام دساتلو باوجود له نورو سره دمرستې توصیه
اولمسه کوی تر څو چه د ثروت خاوندان دفقیرانو ، محتاجانو او بې وزلو
دتجاوز او تیرې موردو نه ګرځی او تریوې اندازې پورې دطبقاتو ترمنځ
نـږدې والی راشی او داقتصادی توازن مبادی ددوی تر منځ استقرار وموی
دغه لوړ مبادی دټولنې ترمنځ دهمکاری، همدردی ، وروړ ګلوی ، خیرخواهی
او خیر پسندی روحیه ژوندی کوی اودانسانی عواطفو په رڼا کښی دانسا نی
کر امت دساتنې دپاره یو بل ته دمرستې لاس ور غځوی .

لـه دغو ټولوخبرونه زمونږ هغه وینا صدق پیداکوی کو مه چه مونږ د د ی
فقری په او ل کـښـی کـړی وه چه داسلام دین دخلکو ترمنځ داقتصادی توازن
دهغه مساوات اوهغی برابری طرفداردی اوغواړی چه دد غه مساوات مبادی
استقرار وموی کوم چه نه په کوم شریعت او مسلك کښی تیر شوی او نه به راشی.
دغی درجی ته بل هیڅ مسلك ور نژدی شوی قدرهم ندی او نه به ور نژدی شی
نه پخوانی شرایع او نه اوسنی مسلکونه.

لدی تفصیلا تو څخه داهم ښکاره‌شوه چه‌حقیقی او صحیحه اسلا می‌ټو لنه‌هغه‌ده چه‌په‌هغی‌کښی‌داقتصاد ی تـو از ن‌او مسا وات‌ټول‌هغه‌اساسات‌تر‌تطبیق‌اواجراء لاندی‌وی‌کوم‌چه‌اسلام‌طر ح کړی دی .

کومو لوړو تعلیماتو ته چه مونږ‌په تیرومباحثو کښی‌اشاره‌وکړه‌دا‌ښکاره کوی چه دغه تعلیمات‌له یوی خوا خپله ټولنه کار اوعمل‌ته لمسوی‌اودهر چا دزیار اوزحمت سزااومکافات ورکوی هرڅوك دخپل‌کار د محصو ل مستحق گڼی،هرچاته‌حق ورکوی چه‌دخپل کار اوزیار میوه وخوری اوفایده تری واخلی دهر چاپه‌مخ کښی لوی میدان پروت دی‌او هرچاته موقع‌ور کوی‌چه په‌دغه میدان کښی‌وزغلی‌اودمسابقی‌په‌ډ گر کښی‌له‌خپلواقرا نومخ‌کښی لا ړ شی اوتفوق‌وگټی اوله‌بلی‌خوا هرچاته نوبت اووارور کوی چه‌دخپلو ا قتصـاد ی شئوناتو دسمون دپاره له فرصت څخه استفاده‌وکړی اود اقتصـاد ی تـوازن دا ستقرار په‌اساس‌کار اوفعالیت‌وکړی. اسلام کوښش کوی چه‌د‌طبقاتو ترمنځ اری والی اوتفاوت له منځه‌یوسـی‌او سـره‌نـژ دی یـی کړی.غو اړی چـه دسر مایی‌دتضخم او تورم مخه ونیسی‌اوټول اقتصادی‌معاملات دخلکو ترمنځ دتعاضد، تکافل ،تضامن اوتعادل‌په اساساتو بنا او سی او یو بل ته‌په‌عد ل او احسان توصیه‌وکوی اویودبل‌خیر خوا ه وی.

دغه‌نظام دباهمی اجتماعی تضامن دوضع بهترین مثال دی او دهروگړی اوهرفرددپاره‌دانسا نی‌کریمانه اوشریفانه ژوند ضمانت کو ی .

«ذالك الدین القیم ولکن اکثرا لناس‌لایعلمون ».

یعنی همدغه دی‌سم د ین خوډ یر خلك‌دهغه‌پـه‌مـزایـا و نه‌پو هیـږ ی

## ٤-د‌ناریته‌اوښځی‌ترمنځ مساو ات

داسلام دین هغه مبدأچه‌دنر اوښځی ترمنځ‌په انسانی‌مشترك‌ارزښت کښی توپیرنا ولی‌بیخی‌له‌منځه‌وړی‌ده لکه‌چه‌دقـا نـون دوړانـدی‌په‌عامه‌حقوقو کښی یی‌دنراوښځی تر منځ دتـوپـیر مبدأ‌له‌منـځه وړی او نا ر ینه او ښځه ټی پدغو شئونو کښی‌سره برابر کړی او مساوی کړی‌دی.په‌همدی اساس اسلام

په هغو حقوقو کښې خواه دنیوي وي او که آخروي د نر او ښځې تر منځ مساوات جاري کړي دي چه تر انساني خصایصو او خصوصیاتو پورې اړه لري لکه چه قرآن کریم فرمایي:

«فاستجاب لهم ربهم اني لا اضیع عمل عامل منکم من ذکر او انثی، بعضکم من بعض» یعني نو خدای د دوی دعا ومنله او وعده یې ورکړه چه د تاسو د هیڅ یوه نر وي او که ښځه عمل به هم نه ضایع کوی، ستاسې ځینې له ځینو نورو څخه دي «للرجال نصیب مما اکتسبو او للنساء نصیب مما اکتسبن» یعني نارینه وو ته د خپل او ښځو ته د خپل کسب له جملې څخه برخه شته او هر څوک د خپل عمل برخه وړی خواه نر وي او که ښځه.

«ولقد کرمنا بني آدم» یعني مونږ د آدم اولادې ته کرامت ورکړی دی پر ته له دې چه نر تو ب او ښځه توب یې په نظر کښې و نیول شي. گوره! دلته یې و نه ویل چه نارینه وو ته مو کرامت ورکړی دی بلکه په عام لفظ سره یې وفرمایل چه نرا و ښځې دواړو ته راجع او سي.

همدارنگه اسلام ښځو ته نه یوازې هر ډول زده کړه په مختلفو انواعو او مراحلو سره روا کړې ده بلکه د دین او دنیا د ضروري علومو زده کړه یې پرې فرض کړې ده لکه چه حضرت پیغمبر (ص) فرمایي. «طلب العلم فریضة علی کل مسلم و مسلمة» یعني د علم زده کړه د هر مسلمان او هرې مسلمانې دغاړې یوه فریضه ده. همدارنگه ام المؤمنین حفصې (رض) د حضرت عمر فاروق لور د جاهلیت په دوره کښې له شفاء عدوي نومې ښځې نه لیک او کتابت زده کاؤ او کوم وخت چه حضرت پیغمبر (ص) په نکاح کړه نو بیا یې هم هغه ښځه را وغوښته او موظفه یې کړه چه حسن خط ور وښیي لکه چه اصل خط یې ور ښودلی ؤ اسلام د ښځې د پاره روا کړې ده چه هره وظیفه په غاړه واخلي او هر ډول عمل او کار چه یې خوښ وي هغه وغواړي که څه هم دغه کارې له خپل کاله نه بهرون او سي په دې شرط چه خپل وقار حیثیت، حشمت وساتي او په داسې توگه یې ادا کاندي چه د تهمت او تور له فتنې نه لرې اوسي هغه سنن او وجایب وساتي چه شریعت ورته ټاکلي دي او دغه کار یې د یو اخلاقي او اجتماعي ضرر باعث و نه گرځي او د خپلو کورنیو هغو وظایفو او وجایبو مانع یې و نه گرځي کوم چه د خپل میړه، کاله او

اولادي په مقابل کښې يې په غاړه لري او له خپلې کورنۍ او ټولنې سره يې د اوضاعو معارض نه شي او په دې شرط چه د دې له توان او طاقت څخه پورته نه وي او لا يې طبعاً شه نه اېسي. همدا رنګه اسلام د ښځې د پاره د دغو کارونو په اجراء کښې له نرو سره ګډون جايز کړی چه د نارينه ؤ سره په عامه ژوندون کښې ګډون وکړي او خپل وظايف د شريعت له خوا د ټاکلو حدودو په داخل کښې اجراء کاندي، علی الخصوص اسلام د ښځې د پاره ټول مدني حقوق محفوظ ساتلي او په کامل اهليت ور ته قايل دی. د هر ډول عقودو او التزاماتو تحمل کړی شي او حق لري چه خريد، او فروش وصيت او هبه او نور عقود په غاړه واخلي او يو د متعاقدينو واقع شي

اسلام ښځو ته د خپلو اموالو اداره روا کړې او اجازه ور کوي چه په خپلو اقتصادي شئوناتو کښې لازمه تصرفات وکړي او دا د دې خبرې دليل دی چه ښځه مجازه ده چه له نارينه ؤ سره اختلاط وکړي او له نرو سره په معامله کښې طرف واقع شي. دغه حقوق چه ښځو ته ور کړی شوي دي د دې خبرې مجوز دی چه ښځه له نارينه ؤ سره د اختلاط حق لري او کولی شي چه په خپلو معاملاتو کښې له نارينه و سره تماس وکړي.

د حضرت ابو بکر (رض) يوه لمسۍ وه چه تل به يې له نارينوو سره په غشو ويشلو کښې مسابقه کوله او حضرت محمد (ص) په ډېرو غزاګانو کښې ښځې او نارينه سره ګډول او په شريکه به يې د دښمن مقابله کوله او کله نا کله به يې د جنګ ولجې په مساويانه توګه د نرو او ښځو ترمنځ وېشلې لکه چه دغه معامله يې د سعد له لور کعيبې بي بي سره د خيبر په غزا کښې وکړه د همدغې غزا په لار کښې يې د قيس الغفاريه لور امية دوه کرته خپلې شا ته سپره کړه او د دغې غزا په پای کښې يې يو امهل ور کړ چه د نن ورځې عسکري نښانو ته ور ته ؤ او د ژوند تر پايه پورې يې په خپله سينه ځړ اوؤ. او کوم وخت چه وفات شوه د دې د وصيت په اثر له هغه نښان سره خښه کړی شوه.

کوم وخت چه د روم د خلکو او مسلمانانو ترمنځ جګړه و نښته ام حکيم په دغه معرکه او جګړه کښې په داسې حال کښې ګډون وکړ چه د انوي ناوې وه او د سر لرګی بوی لا تری ته او مېړه يې د دې دوراندې په شهادت ورسيده خو دغې ښځې د دې په عوض چه وير وکړي او خپل ځوان مېړه وژاړي جامې يې را ټولې

او ځېـله وسله یـې وا خیستـه اوپه‌مقابله‌یـې پیل‌وکړ ترڅوچه‌یې او ه تنه
له‌دښمنانوڅخه د هغه‌پله ترڅنګه ووژل چه‌تراوسه پوری دام‌حکیم دپله په‌نامه
یادیږی . نوپه‌دی اساس اسلام له‌نروسره دښځوا ختلاط دژوندپه عامه‌حا لا تو
کښی رواکړی دی خو په‌دی شرط چه ځېل وقاراوحشمت وسا تی اود کومی
بدګمانی دفتنی باعث ونه‌ګرځی اونه‌کوم‌اخلاقی اواجتماعی‌ضررته منجرشی
اوددی‌دپاره چه دغه اختلاط دکومې اخلاقی فتنې باعث ونه‌ګرځی اسلام‌ځینی
شرا یطا او ځینی محـظو ر ا ت و ضع کـړ ی د ی ، ا سـلام
داخبره منع کړی ده چه‌ښځه له‌ځېل غیرمحرم سړی سـره خلوت وکړی
اودایې هم‌په ښځه لازم‌کړی‌دی چه له‌نامحرمو څخه له‌مخ اولاسونواوقدمونونه
پرته نور ټول ځان‌پټ‌کړی اوپه‌پرده‌اوسی - اسلام په‌ښځه لازم کړی د ی چه
ځېل وقـاروساتـی اوله هغـی وضـع نه‌ځان وژغـوری چه‌دبـداخـلا قـو
اوضعیف الاراده خلکو دبدې‌تمې سبب ګرځی .په‌وقاربايد خبری وکړی او
ځېل‌متانت وساتی په‌بدنظرچاته ونه‌ګوری، اونه‌بې‌ضرورته‌چاته‌سترګی واړوی
ځېل‌عفت وساتی‌اوپه‌هېڅ‌صورت داخلاقوداېجاب‌په‌خلاف‌حرکت ونکړی داسی
درنده‌وضع‌ولری‌چه‌قطعاً چاته‌دسوء قصدهیله‌اوامیدپیدانشی .
اوچه دغه‌ټول شرایط موجود اوسی اسلام‌اجازه ورکوی چه‌نر او ښځی په
ګډه سره دځېل ژوندبارمزله‌ته ورسوی اوځېل‌اجتماعی‌وظایف‌په‌ګډه‌سره‌انجام
کاندی .
همدارنګه اسلام‌په ټولومدنی‌حقوقوکښی‌دقانون‌دوړاندی‌دنراوښځی‌ترمنځ
مساوات جاری کړی اوبرابر یـې‌سره ګـڼلی‌دی .په‌دغه مساوات کښی‌میړو ښه
اوبـې‌میړه ښځه سره‌برابری دی داسلا م‌په‌دین کښی ازدواج داکثرو غر بی
مسیحی‌ملتونوله‌ازدواج سره‌فرق لری- په‌دی‌چه په‌اسلام‌کښی ښځه‌په ازدواج
سره‌ځېل‌نوم‌اوځېل‌مدنی‌شخصیت نه‌ورك‌کوی اونه ځېل‌اهلیت اونه‌د تملك حق
له‌لاسه ورکوی بلکه مسلمانه‌ښځه له ازدواجه وروسته‌هم‌تل‌ځېل نوم ا ودځلپی
کورنی نوم اوځپل‌ټول‌مدنی حقوق محفوظ ساتی اودخرید‌اوفروش،رهن‌اوهبی
اووصیت‌دعقودوداجراء‌اوتحمل‌حق‌لری اوهرګونه التزمات اجرا کو لی شی .

دخپل تملك‌حق‌په مستقل ډول په‌لاس‌لری او هیڅوك حق‌نلری چه‌په‌خپل‌ملك‌کښی دهـغـی‌د تمـلك لاس‌له‌تصرف نه‌وکاږی . په اسلام‌کښی میړوښه ښځه حق لری چه‌خپـل‌مدنی کامل‌شخصیت ولری او خپل‌شخصیت اوخپل‌ثروت‌دمیړه له ثروت اوشخصیت نه‌جلاوساتی اومیړه ته‌روانه‌ده‌اونه‌حق لری‌چه‌د خپلی ښځې په‌مال کښی جز ئی تورین‌تصرف وکړ ی .

پاك خدای فرمایی . «وان‌اردتم استبدال زوج مکان زوج‌واتیتم‌احداهن قنطاراً فلاتأخذوامنه‌شیأ، اتأخذونه بهتانا واثماً‌مبیناً؟ وکـیف تأ خذونه و قد افضی‌بعضکم الی بعضی واخذن منکم میثاقاً غلیظاً» یعنی‌که‌تاسی اراده وکړه چه‌دیوې ښځی په‌ځای‌بله‌ښځه وکړیء اولمړنۍ طلاقه کړی اوهغی ته مو ډیر مال ورکړی اوسی نو‌بیخی له‌هغی څخه هیڅ شی بیرته‌ماخلیء . آ یـا تاسی دغه‌مال په‌ناحقه اوښکاره گـناه اخلیء ؟ اوڅنـگه به‌یی‌بیرته‌اخلیء په‌د اسې حال کښی چه‌تاسی استفاده وړې‌ده اوښځو موږ نه‌ټینگ عهد او میثاق لـه تاسې اخیستی دی. بل‌ځای فرمایی ، « ولایحل‌لکم ان‌تأخذوا مما اتیتموهن شیأ »

یعنی تاسې‌ته داروانه‌ده چه‌له‌خپلو ښځونه دهغو مالونو یو‌ه‌برخه بیرته‌واخلیء چه‌په مهر کښی موورکړی دی . نوڅنگه چه میړه‌ته روانه‌ده چه‌خپل ورکړی مالونه بیرته له‌خپلو ښځونه واخلی نوداخو په‌طریق اولی اوبیخی‌روانه ده‌چه ددې په‌خپل مال کښی تصرف وکړ ی مگر چه‌ددی پـه‌اجازه اوسی. اوپه‌د ې مورد کښی خدای‌فرمایی «واتوا النساء صد قاتهن نحلة، فان‌طبن‌لکم‌عن‌شیء منه نفساً فکلوه هنیاً مریئا»یعنی‌خپلو ښځوته‌خپل مهرونه په‌خوښی ورکړیء نوکه‌دوی‌په‌خپله خوښه له‌یوڅه مال نه‌درته‌تیرې شوې‌هغه په‌ښه توگه اوله پاك زړه وخوریء .

همدارنگه میړه‌ته روانه‌ده چه‌دښځې په‌مال کښی گوتې ووهی او تصرف پکښی وکړی مـگر داچه اجازه ورته وکړی اولابې دهغه دخرید ا و فروش دپاره وکـیل وگرځوی اوپه‌دې حال کښی هم‌ښځه حق لـری چه دخپل میړه وکالت لغوکړی اوپه ځای‌یی بل‌سړی ودروی .

دنړ اوښځې دمساوات دغې درجې ته اوسنی مترقی دیموکراسی ملتونه هم رسیدلی نه‌دی . دمثال په‌توګه په‌فرانسه کښې تردې نزدې وختوپوری اوحتی اوس‌هم دښځې‌حال یوه مدنی مربی‌توب‌ته پاتې کیده. قانون‌له‌ښځو‌نه‌په‌ډیرو مدنی شئوناتو کښې دهغې داهلیت صفت سلب کړی دی ، لکه چه دفرانسی دمدنی قانون (۲۱٦) مادی تصر یح کړی اودابی تثبیت کړی‌ده « چه کوم وخت چه‌ښځه میړه وکاندی که‌څه‌هم ازدواج‌بې ددې اوددې د میړه دملکیت دجلاوالی په‌اساس تړل شوې‌وی خو بیاهم داحق نلری چه‌خپل مال دخپل میړه له‌ګډون اوتحریری‌موافقې‌نه‌پرته چاته‌وبښی اولایی‌ګرو کاندی اولایی‌په‌عوض اولابی‌عوضه چاته ورکړی اویاانتقال پکښې‌راولی » په‌دغه ماده‌کښی که‌څه‌هم په‌دې روستیو وختو کښې ډیر تعدیلات راغلی اوتسهیلات‌یې پکښې‌راوستی‌دی خوسره له‌دې هم ددغې مادې ډیر آثار دفرانسې دښځو په وضع کښې لیدل کیږی اوقانونی تحدیدونه یې راولی .

کوم مدنی مربی‌توب چه په غربی میړو بنو ښځو ایښودل شوی دی دهغه دتأئید دپاره باید دغه‌غربی قانونی قیود اوتحدیدات مثال راوړل‌شی چه‌غربی ښځې ورسره مخامخ دی. هغه‌داچه کوم وخت چه‌ښځه میړونه شی نوسمدستی خپل نوم اودخپلی کورنی نوم له لاسه ورکوی او بیا په‌خپل او دخپل پلار په‌نامه نه‌یادیږی بلکه دخپل میړه په‌نامه او تخلص خطاب ورته کاوشی . نو (مادام فلان) (مسیز‌فلان) یې بولی او لایی دمیړه د کورنی نامه‌ته نسبت کاؤ شی .

اود اچه ددې خپل نوم له‌منځه ځی او دمیړه په‌نامه یادیږی دې‌ته اشاره کوی چه‌دغه ښځه دمیړه په‌کړو سره خپل مدنی شخصیت له لاسه ورکوی اود خپل میړه په شخصیت‌کښی مدغمیږی .

عجبه لا داده چه زمونږ ځینی میرمنی‌کوشش کوی چه ځانونه غربی ښځوته ورته کاندی اودغه جابرانه نظام ومنی او دخپل ځان دپاره دغه ټیټه مرتبه غوره‌کاندی اودخپل میړه په نامه یاده شی او لاخپل نوم دخپل میړه دنامه تابع وګر ځوی اوځنګه چه اسلامی نظام تقاضا کوی دهغه په خلاف

ددې په عوض چه په خپل او دخپلې کورنۍ په نـامه یاده شي د خپل مېړه اولادهغه دکورنۍ په نامه ځان یادول غواړي. تردې هم‌لاعجبه داده چه ځینې هغه ښځې چه دغه تشابه هم‌کوي له نرو سره دمساوي حقوقو مطالبه‌کوي او پدې نه پوهېږي چه خپل یو ډېر مهم حق یـې له لاسه وېستلی دی چه اسلام ورکړی ؤ او په دغه وسیله یـې د دوی شان لوړکړی اودوی یـې له نروسره برابرې کړې وې .

هو ! اسلام د نر اوښځې تر منځ په هیڅ توپیر قایل نه دی مگر دا چه د نراو ښځې طبیعي ایجابات اود هغوی عمومي مصالح او دکـورنۍ او خپله ددې مصالح یـې مقتضي اوسي . ددغه توپیر او تفر قې مهم اړخونه اوجوانب چه اسلام پرې قایل شوی دی دغو لاندې پنځوموارددو ته راجع دی. اقتصادي تکالیف ، میراث . دکورنـۍ‌اداره ، شهادة، طلاق‌چه‌مونږ به دغه‌موضوع‌گانې په راتلونکو بحثونوکښې وڅېړو او ددغې حکیمانه تفرقې او توپیر دلایل او فلسفه به بیان کړواو یقین لرو چه د هر د انصاف د خاونـد د قناعت سبب بـه وگرځـي .

(الف) په اقتصادي تکالیفو کښې د اسلام له‌نظره‌دنراوښځې‌ترمنځ‌توپیر:
په د غو شئو ناتو کښې اسلا م د ښځو دپا ره خپله درحمت لمن اودمهرباني وزرغوړولی او د هغې یـې یو خاص رعایت کړی دی . ددې دپاره یـې د رزق ټول هغه وسایل فراهم کړي دي چه دا له ابتذال څخه ساتي اوپه ژوندکښې یـې دزحمتونو او تکالیفوله شرنه ژغوري . نو پدې اساس یـې ښځه‌دژوندانه له ډېرو تکالیفو خلاصه کړې او دژوند اکـثره تکالیف یـې د نارینه په غاړه ایښي دي. ترڅوچه ښځه صغیره وي نفقه ، جامه اود ژوند نور ضروریات‌یـې د پلار او نورو خپلوانو په غاړه دي . او چه کبیره شي او مېړه وکړي‌ټول ضروریات یـې باید د میړه له خوا تهیه شي اوکه طلاقه شي نو ترڅوچه پـه عدت کښې وي بیایـې هم نفقه ، جامه ، مسکن په مېړه باندې دي . او سره لـه د ې د خـپلو ټـولو مدني حقوقو مالکه ده او په خپل ملك کښې آزادانه او مستقلانه هر ډول تصرفات کړی شي .

مطلقه ښځه علاوه له دې څخه چه نفقه ، جامه او داستوګنی ځای یې
تر عدت پورې په مېړه باندی دی حق لری چه د خپل اولاد د ساتنې او تې
ورکولو اجوره هم له مېړه نه واخلی‌اوله دې څخه داثابته شوه چه دژوندانه
اکثره تکالیف د مېړه په غاړه دی اوښځه ترې معاف، ده .

(ب) په میراث کښی د ښځې او نر تر منځ توپیر .

اسلام د میراث په اکثرو احوالوکښی د نارینه و برخه تر ښځو زیاته
کړې ده ، په اولادونو، وروڼو او خوینډوکښی د نارینه برخه یو په دوه‌ده.
چه ښځه مړه شی مېړه یې دمتروکې څلورمه برخه وړی اوچه مېړه مړ شی
ښځه اتمه وړی چه دلته هم دنر برخه یو په دوه ده . دپلاربرخه نسبت دمور
برخې ته ترډېره‌حده‌زیاته وی او کله ناکله ورسره برابره وی .

او دغه توپیر د ژوند د تکالیفو او مسئولیتونو د توپیر په
اساس بنا دی ، دنرمسئولیت له‌مادی اواقتصادی ناحیې نه‌نسبت ښځی‌ته‌ډېرغټ
دی اوداسلام دتعلیماتو په‌اساس دژوند اکثره تکالیف دمېړه په‌غاړه ایښودل
شوی‌دی ، مېړه‌دکورنۍ دتربیې اوروزنې ، اداری اوانفاق اونورو ضروریاتو
دتامین مسئولیت په‌غاړه لری په‌داسې حال‌کښی چه‌ښځه له‌دغو تکالیفو خلاصه
ده . همدارنګه نارینه‌مکلف‌دی چه‌دخپلو بې‌وزلو خپلوانونفقه ورکړی په
داسې حال کښی‌چه‌په‌ښځه‌دغسی‌تکالیف‌نشته نوله دی کبله‌دابه له عدالت سره
برابره وی‌چه په‌میراث کښی دنارینه‌و برخه‌زیاته وټاکل‌شی ترڅوچه ددغو
ټولو تکالیفو چه‌دده په‌غاړه ایښودل شوی‌دی ووتی‌شی . ښځه له‌دغو تکالیفو
څخه‌ددې په‌حال درحم‌او عاطفې‌له‌کبله معافه‌شوې اوټول دمېړه‌په‌غاړه ایښودل
شوی‌دی ترڅوچه دخپلی‌کورنی دنیك‌مرغی وسایل فراهم کړی .

حتی‌ویلی‌شو چه‌په‌اسلام کښی‌دښځی دمیراث په‌باره کښی دهغی‌په‌طرف‌ډېره
توجه‌شوی ده چه‌دنارینه نیمه‌برخه ورته ټاکل شوی‌ده په‌داسی حال کښی چه‌د
ژوند له‌ټولو تکالیفو خلاصه‌ده اوددې ټول احتیاجات دمېړه‌له‌خوا تامینیږی.

ج ــ دنراوښځی ترمنځ دکورنی په‌اداره کښی‌توپیر :

داسلام دین چه‌دکورنی داداری اوحاکمیت اختیار نارینه‌ته ورکړی په
دوو مهمو سببونو بنادی .

يوواځه نارينه ډوازنى شخصيت‌دى چه‌دكورنى دمعيشت دتامين وظيفه په غاړه‌لرى اوددا لەعدالت‌نەلرې‌ده چه‌دانفاق تكليف‌په‌غاړه ولرى اودصرفولو او اداره كولو اختيارى په‌لاس‌كښى نەوى اوپه‌همدى اساس اوسنى ديمو كراسى گانې اوددې عصردساتيرولاړدې ددغو ديموكراسى گانو اودساتيرو اساس‌دادى څنگه‌چه‌د يوه‌وطن اوسيدونكى اوديوه ملت وگړى ددولت دمنافعو دتامين دپاره هرډول ماليات وركوى اوخپل‌مالونه تل‌ددولت‌دمصالحو په‌لاركښى‌لگوى نو بيابايد بالضرور داحق ولرى چه‌ددولت اوحكومت په‌كارو نو كښى برخه ولرى اودټولو سلطاتواو دولتى‌كارونو مراقبت وكړى اوددغو قوانينو په تشريع او و ضع كښى برخه‌واخلى چه پردوى تطبيقيږى اود دوى د هيواد مصالح تامينوى اوپه‌همدې اساس‌دعمومى انتخاباتو اوپارلمان نظام‌وضع شوى اودملت نمايندگان دهمدى‌نظام‌په‌اساس ددولت دچارو مراقبت‌كوى .

نوپه‌دى حساب دانتخاباتو لەلارې دملت‌وگړى په‌مستقيم‌ډول دحكومت‌په چاروكښى‌برخه‌اخلى اودوكيلانواونمايندگانو له‌لارې‌چه‌په‌آزادوانتخاباتوكښى انتخاب شوى‌وى په‌غيرمستقيم‌ډول اودخپلو وكيلانوپه‌وسيله دحكومت په‌شئونو كښى‌برخه اخلى اودغه‌مبداء قانون پو هانو په‌دى عبارت تلخيص كړې‌ده (څوك‌چه‌خرڅ‌كوى هغه‌لوړاوسى) اولا(څوك‌چه مصارف‌كوى.مراقبت‌حق‌لرى).

دوهم سبب‌ې‌دادى چه‌ښځه اصلاً رقيق العواطف‌اوقوى الانفعاله ده اود هغې‌وجدان اونفسى عواطف دنفس په نوروقوا ؤ كامل‌غالبيت‌اوحاكميت لرى او پاك‌خداى ښځه‌په‌همدې‌وضع پيداكړې‌اودغه خواص يى دهغى په سرشت‌كښى ايښى‌دى ترڅوچه ددغوعواطفو اوخاصو غرايزو په‌بركت او ايجاب خپلواساسې وظايفوته چه‌هغه مورگيرت اوداولاد ساتنه اوروزنه ده په‌ښه توگه رسيدگى وكړى‌شى اوپه‌زړه پورې توگه‌يى انجام كاندى اودابه هيچاته پټه‌نەوى چه‌دغه وظيفه لەتـفكر ، ارادې اوتأمل‌نه زيات ډيرو رقيقو عواطفو اونرم وجدان‌او هربان زړەته اړه‌لرى . په‌داسى حال‌كښى چه‌نرسره‌لەدې چه عواطف او وجدان لرى‌دښځى په‌شان دغه‌وظيفه انجامولى‌نشى‌بلكه په‌نارينه‌و كښى‌دتفكراو ادراك نـا حيه قوى وى .

اوداخبره هم کوم استدلال او بیان‌ته ضرورت نلری چه اداره اوریاست ، دکور اوکلی مشری او زمامداری له‌عواطفو اواحساساتو نه ادراك ، پوهې او تدبیرته ډېره اړه‌لری اوبه دې‌حساب په‌کلی ډول دمشری او ریاست صفات نسبت ښځوته په‌نروکښی ډېر اومتوافر دی .

اوهمدغو دوو مهمو سببوته قرآن‌کریم اشاره‌کوی اوپه‌ډېرو بلیغواولنډو عباراتو کښی داسې فرمایی . «الرجال قوامون علی‌النساء بمافضل‌الله بعضهم علی‌بعض‌وبماانفقوا من‌اموالهم» یعنی نرپه‌ښځو مسلط دی اوحاکمیت پرې‌لری ځکه‌چه نروته خدای ځینی هغه فضایل ورکړی چه ښځوته‌یی نه‌دی ورکړی اوبل په‌دې سبب چه‌نارینه‌دښځو دژوند دوسایلو دتامین وظیفه په‌غاړه‌لری او ټولې اړتیاوې‌یې پوره کوی نوله‌دی کبله باید دکورنی دمشری او ریاست وظیفه همدده په‌غاړه وی . له‌دی‌نه شاید هیڅوك انکار ونلری اوبلکه په‌علم اومشاهده ثابته ده چه‌دنر اوښځی دسا ختمان ترمنځ ډېر تفاوت شته اودبدنی ترکب دتفاوت په‌لحاظ ددواړو ترمنځ باید طبعاً تفاوت موجود اوسی .

خوله‌دې سره سره دابابد په‌نظر کښی ونیول‌شی چه‌دکور کهول دمشری اوریاست وظیفه چه‌نروته ورکړه شوې‌ده باید درحم ، عاطفی ، مینی، محبت لارښودنې اولورونې په‌اساس بناوی . اسلام دغه‌وظیفه په‌ډېروداسی‌قیودو مقیده کړې ده چه‌دښځو دکرامت ساتنه اودحقوقو صیانت‌یی کوی اودهغو دمصالحو دتامین دتثبیت دپاره ښې‌لارې چارې گټل کېږی . نو دغه ریاست رعایت ، خالصه‌مینه ، تدبیر اورهنمایی ده‌نه‌استبداد اومطلق العنانی حکومت اوسلطه اواسلام په‌دې خبره ډېر حرص ښکاره کړی دی چه دکور د ادارې متکفل باید ټل دخپلی کورنی اوبالخاصه دخپلی ښځی مصلحت اومنفعت په‌نظرکښی ولری اوددغو قواعدو رعایت ټل وکړی اوپه‌ټولو احوالو اواوضاعو کښی چه ښځه‌یی دځان دپاره غوره کوی همدغه ملاحظه وساتی نوپه دې ترتیب ددې ریاست معنی صیانت ، رعایت، حمایت ا مداد اودهغی دټولو اړتیاوو پوره‌کول دی نه‌بل شی . حتی ښځه‌دومره حریت لری چه‌کوم وخت‌چه خوانه‌شی‌اوعاقله اوسی حق‌لری چه‌په‌خپله خوښه دځان دپاره یومیړه خوښ کاندی او که خپل

ولی هم‌دمشورې له‌پاره په‌دغه‌کار کښې له‌ځان سره شریك‌کاندی بیاهم‌اختیار
ددې په‌لاس کښې دی چه‌دخپل ولی - پلار او نیکه مشوره منی او‌که‌نه‌یی‌منی
پلار او نیکه داحق نلری چه‌هغه دغه کارته اړباسی او‌اجباراً یی پری‌ومنی ،
او‌که چیرته کوم‌پلار دخپلې‌لوردپاره کوم‌مېړه‌خوښ او‌غوره‌کړ نودغه‌ازدواج
ترهغه وخته پوری نافذنشی گڼل کیدی ترڅوچه ددې رضا نه‌وی پکښې
اخیستل شوی .

دیوه روایت له‌مخی یوه‌ورځ یوه ځوانه ښځه بی‌بی‌عایشی (رض)ته راغله
او‌ورته‌یی وویل چه‌زه‌می خپل‌پلار خپل‌وراره‌ته په‌نکاح کړې‌یم چه زما خوښه
نه‌وه نوحضرت عایشی ورته وویل چه‌وگوره چه‌حضرت پیغمبر (ص) راشی .
یوه گړی وروسته چه حضرت پیغمبر تشریف راووړ هغی ښځی خپله
خبرورته تکرار کړه نوحضرت پیغمبر(ص) ورته وفرمایل «الایم احق‌بنفسها
من‌ولیها» یعنی ښځی دخپلو نفسو نو په‌واك‌او‌اختیار کښې‌ترخپلو‌ولیانو‌مستحقتری
دی . یعنی که‌ته راضی نه‌اوسی حق‌لری چه دغې نکاح‌ته تن کښې نه‌دی ،
نو بیادغی ځوانې ښځی عرض وکړ چه‌ما خودغه عقدمنلی او‌خپل مېړه‌ته‌تسلیم
شوې‌یم مگر داخبره‌می ددی د‌پاره وکړه ترڅوچه ښځی وپوهیږی چه نارینه
په‌دوی باندې په‌دغه باره کښې څه‌حق نلری او‌که‌چیرته دوی‌کوم مېړه‌دځان
د‌پاره غوره کړ او اولیاؤیی پرته‌له‌کوم شرعی دلیل نه‌رضانه‌پرې ښکاره‌کوله
نودوی حق‌لری چه‌خپل شکایت قاضی‌ته وړاندې کړی او‌خپله اراده عملی
او له خپل غوره کړی مېړه سره ژوند اختیار کاندی
لکه‌چه قرآن کریم فرمایلی «واذاطلقتم النساء فبلغن‌اجلهن فلا تعضلو هن
ان ینکحن ازواجهن‌اذا تراضوا بینهم بالمعروف» یعنی‌کوم‌وخت چه‌تاسی‌خپلې
ښځی‌طلاقې‌کړی‌او‌عدت‌یی پوره‌شونو تاسې‌هغوی له‌مېړو نو نه مه‌ژغورئی او‌منع
کوی یی‌مه‌چه‌مېړونه وکړی که‌په‌ښه او‌معروفه توگه‌یې رضاسره راغله . یعنی
هیڅوك حق‌نه‌لری‌چه‌یوه ښځه‌چه‌په‌خپله‌خوښه خپل‌سیال‌مېړه‌کوی‌له‌مېړه‌څخه‌یی
منع کړی. په‌شرع‌کښې دسیال‌سره نکاح‌له‌دې کبله مقیده شوی‌ده چه‌ازدواج
یوازې ددوو‌تنو‌ترمنځ دیوې‌علاقې پیداکیدل نه‌دی‌بلکه‌دوه‌کورنی سره‌نښلوی

او چه دمیره او ارتیني ترمنځ کفاءت موجود نه وی او یو د بل سیال نه اوسی نود
کو رنۍ دعار او پېغور باعث ګرځی په تیره بیا د ښځی د کورنی دپاره چه په شرافت
کښی تر ټی زیاته وی . نو له دی کبله اسلام کفاءت شرط کړی دی ترڅو چه دهغې
دکو رنی پت محفوظ وساتل شی او دپت حق یې پایمال نشی .

نو ځکه یې اولیاء په دې باره کښی شریك کړی او حق یې ور کړی دی چه
له غیر سیال سره دښځې خورلور نکاح فسخ کاندی مګر نه په استبدادی توګه چه
دوی به څوك ورته ټاکی بلکه دومره حق لری چه له غیر سیال څخه یې د نـکاح
کولو څخه منع کاندی او بنا په همدې احتیاط اسلام قاضی ته حق ور کړی دی چه
که له ټا کلو حدودو څخه تجاوز وشو په دې زمینه کښی مدا خله وکړی او دغـه
اصل تطبیق کاندی .

او که ښځه له خپل سیال سره واده کوی دهغې اقرباء نه یوازی د فسخ حق
نه لری بلکه اعتراض هم نشی پری کړی او په دې باره کښی کامله آزادی لری
حاصل دادی چه د کوم ریاست او مشری حق چه په کور کښی د اسلام له خوا
نارینه ته ورکړ شوی دی دیوه حکیمانه رعایت په صورت څرګندیږی او په دغه
وسیله دکو رنۍ او خپله د ښځی مصلحت تامینیږی . دغه ریاست او وا کداری
د ښځی له شخصیت څخه څه کوی نه او نه یې مدنی اهلیت سلبوی . لکه چه په خوا
مو و یل د مسلما نی ښځی له واده نه وروسته هم نوم ، نښان ، د کورنـی نوم
مدنی حقوق او هر راز اهلیت محفوظ پاتی کیږی او د هر راز عقودو تحمل کولی
شی او د هر راز عقو دو د اجراء صلاحیت لری. د تملك حق یې باقی پاتې کیږی او
په کامل واك او اختیار خرید او فروش ، هبه او تملیك او نور عقود کولی شی او
د خپل شخـصی ثـر وت خا ونـده ګڼل کـیږی . شخـصیت او ثـر و ت یې
د مـیړه له شخصیت او ثـر وت نـه جـلا پاتـی کـیږی او میړه هـیڅ حـق
نه لری چه دهغی په مال کښی دهغې له اجازې نه پرته لاس ووهی او لا تصرف پکښی
وکړی مګر دا چه دهغی له خوا وکیل شوی وی خو بیا هم ښځه حـق لری چـه خپل
میړه له دغه وکالت نه عزل کړی او په عوض یې بل څوك ودروی . او په کور کښی
په ښځه باندې دمیړه د ریاست معنی داده چه کور د سیاست تدبیر په غاړه واخلی

اوله خپل ښځې سره مرسته وکړي اوپه معقوله اومعروفه توګه دخپل ښځې اطاعت جاب کاندي اواسلام ددې په مقابل کښې په نرباندې یوځه وجایب ایښې دي چه باید پرځای یې کړي .

لههغې جملې څخه دکورنۍ نفقه ، کسوت اومسکن بایدورکړي اودوګړو دسیانیت اودهغوی دحقوقو دساتنې رعایت وکړي همدارنګه دایې هم پـري واجبه کړې ده چه عدالت مرعی کاندي اوپه ښه توګه معامله اورفتار ورسره وکړي اوپه ډېره مهربانۍ سره دازدواج مشکلات لهمنځه یوسي ، په اسانه لار خپل کا رونه په مخ بوځي اوپه نرمۍ سره کاږه سم کاندي . لههمدې کبله به حضرت پیغمبر (ص) فرمایل چه «خیرکم خیرکم لاهله» یعنې ستاسې ډېرښه سړی هغه دی چه له خپل کورکهول سره ډېر ښه وي اوپه مینه او الفت ، نرمۍ اوعطوفت ګوزاره ورسره کوي. قرآن کریم دغه حکیمانه نظام په ډېرلنډو اوبلیغ عبارت کښې تلخیص کړی دی. « ولهن مثل الذی علیهن با لمعرو ف وللرجال علیهن درجة» یعنې څنګه چه نارینه په ښځو حق اري همدا رنګه ښځې هم په نرو حقلري او دواړه باید په ښه توګه یو دبل حقوق اداکړي اواحترام یـې وساتي که څه هم نارینه نسبت ښځو ته فضیلت لري خوله دې سره باید نارینه دښځو دحقوقو احترام وساتي. نوپدې اساس ښځې داسلام په نظرکښې د هغووا جباتو اوتکالیفو معادل حقوق لري کوم چه ددوی په غاړو ایښودل شوي دي. همدارنګه د نارینه ؤ حقو ق هم دهغوی دتکالیفو په برابر دي اوعدالت هم همدغه دي چه راحت او زحمت سره برابروي اوهرڅوك حقلري چه دزحمت په اندازه راحت ولري او د راحت په اندازه زحمت وګالي .

د - په شهادة کښې دنراوښځې ترمنځ توپیر :

اسلام په ځینو مهمو مسایلوکښې لکه دزناحد او قصاص اوداسې نورشول ښځو ته د شهادت موقع بیځی ورکړې نه ده اوپـه تنهایـې صورت سر ه یـې پرتـه له هغو مسایلو چه له ښځو پورې اړه لري د ښځو شهادت منظورېدی نشي او له دغسې مسایلونه پرته په نورو مسایلو کښې ددوو ښځو شهادت چه نرهم ورسره وي د یوه نارینه دشهادت ځای نیسي اودحکم دارمدار ګرځېدی شي

دد ې خبرې اصلی سبب دادی چه پاك خدای د خپل بالغه حکمت د مقتضی په مطابق د ښځی په خټه او طبیعت کښی دا ایښی ده چه رقیق عواطف واری او وجدان او احساسات یې د ژوند قوی مظاهر اوسی ترڅوچه د همدغو رقیقو عواطفو او لطیفو احساساتو په رڼاکښی دمور ګېرت او د اولاد د ساتنې مهمه وظیفه په ښه توګه انجام کړی شی. ځکه چه دا هرچا ته معلومه ده چه دغه وظیفه تر ادراك او تفکر نه زیات دغسی نرمو عواطفو او رقیق وجدان او مهربانه زړه ته اړه لری لکه چه پخوا تېره شوه او دابايد عیب ونه ګڼل شی چه دښځی عواطف نسبت تفکرته قوی دی بلکه دادی له کمالاتو اودښځی توب او مورتوب له اوړو صفاتو څخه ګڼل کېږی .

په ښځو کښی دوجدان قوی والی او دعواطفو رقت کله ناکله دا داحساساتو او عواطفو ترطوفان لاندې راولی او په غیرشعوری صورت سره دا له حقیقت نه بلی خواته اړوی نوله دې کبله عدالت ددی خبری تقاضا کوی چه د ښځو د شهادت په موردکښی احتیاط وشی نو ځکه یې په خطیرو او مهمومواردو کښی لکه په زنابانندی شهادت شو بېخی جا یز نکړ ، همدارنګه په تنهایی سره د ښځو شهادت په هېڅ موردکښی قبول نه دی مګرپه هغو مواردوکښی چه له ښځو پورې مخصوص اوسی اوله ښځو نه پرته بل څوك پرې پوهېدی نشی او لاپوهېدل پرې ګـران وی او له دې نه پرته په نورو مواردو کښی ددووتنوښځو شهادت چه یو نارینه هم ورسره وی دیوه نرپه ځای ګڼل کېږی او د حکم مدارګرځېدای شی. داهم له دې کبله چه د ښځو په سرشت کښی نسبت نرو ته فراموشی ډېره ده نو ځکه دوه تنه ښځی دیوه نر په حیث ګڼل شوی دی تر څوچه که دیوې هېرشی بله یې ورپه یادکړی لکه چه قرآن کریم هم په همدغه علت تصریح کوی. « واستشهدو اشهیدین من رجالکم فان لم یکونا رجلین فرجل وامرأتان ممن ترضون من الشهداء ان تضل احداهما فتذ کر احداهما الاخری » یعنی او په خپل عقد باندې دوه نارینه شا هد ا ن و د ر و ی .

اوکه دوه نارینه نه‌وی نوځوك چه‌مو خرښ وی دهغوی له‌جملی څخه یونر او دوه ښځی شاهدانی ونیسی ترڅوچه که‌یوه ښځه خبرهیره کړی نوهغه بله‌یی وریه‌زړه کړی .

## ه ـ دطلاق په‌باره کښی دنر اوښځی ترمنځ توپیر :

دفرنگ دمسیحیانوډیر علماء داسلام دطلاق پـه‌نظام باندی اعتراض او خورده‌گیری کوی اووایی چه‌اسلام ولې طلاق‌رواکړی اوبیایی د میړه خاص حق گرځولی دی؟ په‌دغه انتقاد کښی دمسلمانانو ځینی فرنگی مآب ځوانان اونجونې هم‌له‌دغو فرنگیانو سره گډون کوی اودواړه‌ډلې په‌جرئت‌سره‌داسلام له‌وضع‌نه شکایت کوی اوغواړی چه‌دغه نظام‌ته تغیر ورکړی‌شی او دغربیانو درواج اومعمول په‌مطابق جر یان ومومی ترڅوچه زمونږ دولس‌بدبختی‌گانې اوبیرته پاتې کیدل لری شی اود متمدنو او رسیدلو ملتو پـه قطار کـښې ځای ونیسی .

خوپه‌خراله‌هغه چه‌ددغو فرنگیانو اوفرنگی مآبانو د اعتراضونو تردید وکړم اودطلاق په‌باره‌کښی داسلام دنظام هغه‌صحیح وضع ښکاره‌کړم‌کومه‌چه ډیرو خلکوته معلومه نده اولادمکابرې ، عناد اودښمنی له‌کبله تجاهل‌ترې کوی‌اوستر گې پرې‌پټوی ، اولاغواړی‌چه‌خپلو پټی دښمنی گانې اوبدبینی‌گانې چه‌داسلام په‌نسبت‌یی‌لری ښکاره‌کړی اوکوشش کوی چه‌تعلیمات‌یی پټ اوهغه دخپلو پیروانو په‌نزد ټیټ معرفی کاندی دغسې غلط تعبیرات تری‌کوی اوله حقیقت‌نه لری تومتونه پرې وایی .

پخوا له‌هغه چه په‌دغه باره کښی داسلام صحیح اومعقول نظام بیان کړم دابه‌ښه‌وی چه دغرب دمسیحیانو دطلاق نظام‌ته یوه مجمله کتنه وکړو . هغه نظام کوم چه‌یی زمونږ ځینی فرنگی مآبان غواړی اودهغه دترویجولو هیلی ښکاره‌کوی .

دمسیحیت‌دـول مذهبونه چه دغرب مسیحیان پرې روان دی درې دی : کاتولیکی، ارتوذکسی اوپروتستانی .

کاتولیکیان په کلی ډول سره طلاق ناروا گڼي او په هیڅ مهم او غیر مهم سبب سره د نکاح فسخه جایزه نه بولی که څه هم یو له متعاقدینو نه د خیانت مرتکب هم شی .

هرډول خیانت ، دروغ‌نه او نالایقه وضع د طلاق مجوز نه بولی خو د خیانت په صورت کښې اجازه ورکوی چه د نکاح د بقاد باوجود یو له بل نه اریَو او سیږی او جلا ژوند سره وکړی . له دغه جلاوالی سره سره یو هم حق نلری چه بل واده وکړی او خپل ژوند ته تنظیم ورکړی . ځکه چه دغه کار تعدد زوجات بلل کیږی او مسیحی دین په هیڅ صورت دغه کار جایز نه بولی . کاتولیکیان خپله عقیده د متی انجیل له دې قول نه ماخوذه بولی : «انسان ته روا نه ده چه هغه پیوند پرې کړی چه خدای نښلولی وی» خو د کاتولیکیانو ځینی څانگې طلاق د خیانت په صورت کښې جایز گڼی خو له طلاق نه وروسته یو ته هم حق نه ورکوی چه بل واده وکړی .

او هر څه چه د مسیحیت نور دواړه مذاهب دی ( پروتستان ، ارتوذکسی) هغوی په ځینی محدودو حالاتو کښې چه هم هغه په زوجیت کښې خیانت دی طلاق جایز گڼی مگر دواړو ته اجازه نه ورکوی چه له هغه وروسته بل واده وکاندی او مسیحی هغه مذاهب چه طلاق جایز بولی د متی انجیل په دې خبره باندې چه د مسیح (ع) په ژبه بیان شوی استناد کوی . «څوك چه خپله ښځه د زنا له کوله پرته طلاقوی دې ته پاتی کیږی چه هغه زناته لمسوی او ورته چمتو کوی یی» مسیحیان چه طلاقی او طلاق شوی ښځی‌ته د بل واده اجازه نه ورکوی د متی انجیل په دی قول باندې استدلال کوی چه وایی «څوك چه طلاقه شوې ښځه په نکاح اخلی لکه چه زنا کوی» دادی د دوی مسیحیت او د دوی اناجیل چه دغه دستوور کوی . د دوی مسیحیت مو ځکه وایه چه په کوم مسیحیت چه دوی روان دی او عمل پری کوی هغه بیخی له هغه نصرانیت نه بیل او مخالف شی دی چه قرآن کریم بیان کړی او حضرت عیسی (ع) دوی ته راوړی ؤ .

ځکه کوم نصرانیت چه قرآن بیان کړی هغه دادی چه دغه دین یواوی او لوړ او له ا ساتیپاونه ډك اسمانی دین ؤ چه د خدای د وحدانیت او د بند گانو د مصالحو

دتأمین په‌اساس ولاړۇ اوهرڅه چه‌اوسنی نصرانیت دی‌هغه‌خو په‌حقیقت کښی له هندی‌تثلیث‌اورومانی بت‌پرستی اوبوڅه نورومختلفو عناصرونه مخلوط جوړ شوی‌شی‌دی چه‌له یوځای اوبل ځای‌نه‌را اخیستل‌شوی دی اوله داسی مختلفو عناصرونه جوړ شوی‌دی چه‌یوله‌بل‌نه‌تینتي اویوله‌بل‌مره نه‌کیږی اودغه‌نصرانیت ددنیوی‌تشریع اوقانون گذاری په‌لحاظ انسانی‌طبع‌ته‌کوم‌دروندوالی‌نه‌ورکوی اونه دبندگانو دمصالحو رعایت‌کوی ، نه‌دانسانی ارزښت ته‌درندوی اونه‌یی دعمومی اودنیوی مصالحو ملاحظه ساتی .

اوددوی اناجیل‌موهم‌ځکه‌وبل‌چه ددوی موجوده انجیل‌په‌کلی صورت له هغه‌مقدس کتاب‌نه خلاف‌دی کوم‌چه‌قرآن دهغه‌بیان‌کوی اوپه‌حضرت عیسی(ع) نازل شوی‌دی ځکه‌انجیل په‌خپل حال‌پاتی شوی‌نه‌دی اواکثره‌مطالب یی‌تحریف شوی اویوبل‌شی‌تری جوړ شوی‌دی چه‌په‌هیڅ‌صورت یوآسمانی مقدس کتاب‌گڼل کیدی‌نشی . حتی‌ددوی مسیح‌هم‌له‌هغه مسیح‌نه‌په‌غیر دی کوم‌چه‌قرآن کریم‌ښودلی دی. کوم‌مسیح چه قرآن‌کریم ښودلی‌دی هغه‌یوبشردی چه دنورو انسانانو په شیرخوری خښکی‌اوپه کوڅو اوبازارونو کښی گرځی راگرځی اوهرڅه چه نورافراد کوی دی‌یی هم‌کوی . یعنی‌ټول بشری‌اوصاف. بشری‌اخلاق اوبشری عادات‌لری اوکوم مسیح چه‌دوی یادوی یوعجیب ښوندی موجود دی چه‌بشری عقول‌یی په‌ادراك کښی‌حیران دریان‌پاتی دی اوپری پوهیدی نشی‌چه‌داڅه شی دی ؟ دوی‌هغه دخدای زوی‌بولی چه‌دخپل‌پلار له‌خوا بنیادمانوته رالیږل‌شوی ترڅو چه‌دهغوی له‌خوا په‌دار کړی‌شی اووژل‌شی اوپه‌دې ترتیب دهغه په‌وینو دهغی‌گناه کفاره ورکړی‌دکومې چه‌ددوی پلارحضرت‌آدم دغنم‌ددانې په‌خوړلو مرتکب شوی‌ۇ اوتراوسه پورې ددوی په‌غاړو پرته‌وه اوکه‌دوی دغه قربانی ورکړی نه‌وای اودخدای عزیززوی بی‌وژلی نه‌وای نودغه‌گناه به‌همدغسې‌ددوی په‌غاړو پرته‌وای . په‌عین زمان‌کښی چه‌دوی هغه‌د خدای زوی‌بولی دخدایی نسبت‌هم ورته‌کوی اولایی‌دخدای جزءبولی اولایی په‌یوه آن‌کښی هم‌انسان‌او هم‌خدای بولی .

خو راځي ‌ه چه‌له‌دی موضوع‌نه تېرشوځـکه چـه‌داخبره ډېـره اوږده ده او ډېر شاخـونه لری او بـېرته هغه خـبر شروع کـړو چه مونـږ دهـغی پـه صـدد کـښې يـو او هـغـه د طـلاق د نـظام خـبـره ده ا ود د وی اناجيل او مسيحيت يـی بيانوی .

نوکوم وخت چه دمېړه او ارتيني ترمنځ روابط خراب شول او شقاق او نفاق يـی دې درجې ته ورسېدچه اصلاح يې ناممکنه شوه اوګې ژوندلايطاق جحيم وګر ځېداو د کورنـۍ واړه اوغېږ، نر اوښځی ټول له‌دغه ازد وا ج څخه‌شاکی ؤاودکورژوند دوزخ ورته اېسېده خو بيا هم دغـه اناجيل او دغه مسيحيت اجا ز ه نه ورکوی‌چه دغه طوق لعنت له خپلو غاړواري‌کړی‌اوخپل دوزخ په جنت بدل‌کاندی .

که د يوه سړی او يوې ښځی اوبالاثر ديوې‌کورنۍ ژوند دتباهۍ په‌لور درومی هم بايد سره بېل نکړی شی او نه يـی بد بختی په نېك مرغۍ بدله کړی شی ځکه چه « انسان حق نلری‌چه خدای جمع کړی سره بېل‌کاندی».

اوکوم وخت چه دمېړه او ارتيني د طبايعو ترمنځ تنفر او اختلاف پيدا شو اويو دبل په نسبت خوابدی شول اودې درجې ته سره ورسېدل چه مرګ ورته اسانه وی تر دې چه يودبل مخ ته وګوری او نور ټول انسانـی وسايل ددغې وضع له علاج څخه حاجزشی ځکه چه د بندګانو زړونه دخدای په‌لاس کښې‌دی‌اوهېڅوك‌نشی‌کولای‌چه‌خپل زړونه له خپلې لادې واړوی نوبياهم دوی بايد دغه وضع وګـالی ځکه چه ددوی اناجيل او مسيحيت دوی ته د طلاق اجازه نه ورکوی او امر ورته‌کوی چه خپل ژوند په همدې توګه اوپه‌همدې عذاب کښې تېرکړی ځکه چه « انسان ته روا نه ده چه خدا ی جمع کړی سره بېل‌کاندی »

په‌دغه‌وخت‌کښې چه‌له‌زوجينو څخه‌ديوه‌اخلاق‌فاسدشی او دازدواج دحقوقـو اووجايبو ملاحظه نه ساتی او نه يـی رعايت‌کوی اوژوند يـی افتضاح ته سره ورسېږی او بله هېڅ وسيله هم نه وی چه ددوی وضع اصلاح کـړی او دوی

بورته سمې لارې ته راوګرځوی بیاهم باید په همدې توګه پاتی شی ځکه چه ددوی اناجیل اومسیحیت ددوی دپاره طلاق حرام بولی اوپه مهره او ارتینه واجبوی‌چه په همدې وضع‌خپل ژوندته ادامه ورکړی‌اوآه قدری‌هم‌له‌خولې‌نه ونه باسی . ددوی دین‌کله ناکله څه مساهله او تسامح هم ورسره کوی او اجازه ورکوی‌چه ظاهرا له خپلی ښځی نه ځپل پالنګ بېل‌کاندی اودنکاح عقد یې باقی اوسی اولا د طلاق اجازه هم ورکوی خو دا اسانی او سهولت نه ورسره‌کوی چه دخپل‌کور دجوړولو دپاره نوی ترتیبات ونیسی اوبل‌واده وکاندی ځکه چه « انسان حق نلری چه خدای جمع کړی سره‌بېل کاندی» او ځکه چه « څوک‌چه‌طلاقه‌کړی ښځه په نکاح‌اخلی‌لکه‌زنا چه ورسره‌کوی».

که چیرته یوله مهره‌اوارتینې نه داسې لیونی شی‌چه دجوړښت هیڅ امید یې نه وی او د یوه ناطق حیوان ټول ممیزات له لاسه ورکړی او بلکه له حیوان نه هم‌ګمراه شی او داسې خطرناك شی چه د ټولې‌کورنۍ دپاره او هر څوك چه ګنې ورسره اوسېږی یو شان خطروی، او لا په یوه مدهش‌ساری مرض اخته شی‌چه د جوړښت هیله یې هم نه وی ، اولا خپلی جنسی قواوې له لاسه ورکړی ، اولاداسې‌شنډ شی چه له توالد او تناسل نه پاتې‌اودازدواج یوه مهمه غایه فوته شی، اولا دیوې اوږدې مودې دپاره غایب شی چه مړی‌او ژوندی‌یې معلوم نه وی ، اولاپه دایمی حبس محکوم شی . اولاداسې‌مسکین شی چه د نفقی اوکسوت له عهدې څخه‌هم‌وتی نشی نوښځه باید دهغه دنکاح په قید کښی پاتې شی تر څو چه له لوږې ومړی او لا په خپلو تیو خوله ولګوی. له دغو مشکلاتو سره سره بایددغه‌نکاح‌نافذه پاتې‌شی‌ځکه‌چه ددوی دغه‌مسیحیت‌اودغه اناجیل‌په دغسی احوالوکښی هم‌دطلاق اجازه نه ورکوی او که دغه‌سهولت ورسره وکړی نوبیادغه اسانتیانه ورسره کوی چه دبل واده اجازه ورکړی .

ځکه چه « انسان حق نلری چه خدای جمع کړی سره بېل کندی » .
اوځکه چه « څوك چه له مطلقی اوطلاقی سره نکاح کړی لکه چه زنا کوی» اوددې اجازه هم نه ورکوی چه په دغسی ښځه باندې« بله ښځه» وکړی ځکه چه دزوجاتو تعدد روا نه دی .
پدې روستیو وختو کښی یوې مصری مسیحی مېرمنې چه زاهیه عازر مرقس نومیده دخپل مېړه له لاسه مربوطې محکمې ته شکایت وکړ او له دې کبله یې له هغې څخه له خپل مېړه نه طلاق و غوښت چه مېړه یې نفقه نشی ورکولی. اوداتردې وخته پورې پدې قادره شوې نه وه چه د محکمې هغه حکم په خپل مېړه باندې تطبیق کړی کوم چه د محکمې له خوا د دې دمېړه په ضد صادرشوی ؤ او غوښتنه یې کوله چه مېړه باید نفقه ورکړی .
څنګه چه محکمې دغه قضیه ترڅېړنې لاندې ونیوه او حقایق یې لخاته معلوم کړل د انجیل په حکم یې ددغې ښځې ددعوې په نه اورېدو فیصله صادره کړه ځکه چه دانجیل له ډېرو ځایو څخه دامعلو مېږی چه دنر او ښځې تر منځ دازدواج رابطه یوه مقدسه اوقدسی رابطه ده او هغه داوه ګونو کنیسو له اسرارو څخه بوسردی. مسیحی شریعت ټول خلك له دې څخه منع کړی دی چه هغه ته ګوتې ورواوزدې کړی اولایې د فسخې کوشش وکړی .
ځکه چه « انسان ته روا نه ده چه خدای جمع کړی سره بېل کاندی »
محکمې په خپله فیصله کښی داهم علاوه کړې وه چه « داعجبه خبره ده چه د کنیسې ځینو متولیان او ددین علمبرداران اودهغې دمجلس ځینی غړی دزمانې د تحولاتو تابع شوی اوضعیف الایمانو خلکو دغوښتنو دپاره یې مثبت جواب ورکړې او دداسې علمو او موجباتوله کبله یې د هغوی دپاره طلاق جایز کړی دی چه په انجیل کښی هیڅ سند د هغه دپاره په لاس کښی نلری. پداسې حال کښی چه دانجیل حکم پدې مورد کښې بېخی قطعی دی چه طلاق له زنا نه پرته په بل هېڅ صورت کښی روانه بولی او حتی د طلاقی او مطلقی نکاح ناجایزه ګڼی او د زناحکم ورکوی . محکمې په خپل حکم کښی دا خبره تصریح کړه چه له نفقی نه د مېړه عاجز کېدل د انجیل په حکم دطلاق مجوز کېدی نشی نو ځکه یې ددعوې په نه اورېدو حکم صادر کړ .

اوکوم وخت چه مېړه او ارتیني دواړوو پټیله چه ددوی کوراوکلی نـه سره کیږی اوگذاره یـی له هره حیثه ناممکنه ده او دواړو اراده وکړه چه په ښه زړه سره بېل شی ترڅوچه ددواړو وسیله خدای وکړی اوښه ژوند یـې په برخه شی خوبیاهم دغه اناجیلاو دغـه مسیحیت دوی دخپلو اراد و دعملی کولو دپاره نه پرېږدی او امر ورته کوی چه په خپله هغه وضع باقی پا تې شی کومه چه ورته ناممکنه ده ، خپل هغه ژوندته ادامه ورکړی چه له مرگ نه ورته سخت دی . هغی وضع ته دوام ورکړی چه یویـی هم دوام نـه غواړی او د یوې جزا په توگه یـی باید وگـالی ځکه چه د انسان حق نلری چـه خدای جمع کړی سره بېل کاندی ؟



تردې عجبه لاداده چه دوی په یوه اسې خدای باندې مایل دی چه ومره جا مـد ا و عـا جـز د ی چه جمع کول کړی شي اوبېلولی یې نشی؟ او بیا په څه دلیل په نکاح کښی جمع کول خدای تـه منسوبوی او تفرقه انسان ته ؟ حتی هغه تفرقه چه عمومی مصالح یـې تقاضاکوی اودهغې په وسیله د کورنی ښې ګـڼې فراهمېږی او اجتماعی ښې گـڼې لری

هر کله چه دغه حالات او مثالونه چه مونږ وښودل کوم خیالی حالات نه دی بلکه هره ورځ د زرگونو خلکو په ژوندکښی پېښېږی اوهر کله چـه غربیان د بشر له نسل څخه دی پـریان اوملایك نه دی نو دایـی وپټیله چه دا ډېره سخته پرې تمامیږی چه ترڅوچه په خپله انسانی اوبشری طبع اوس ددغه مسیحیت او دغو اناجیلو دتعلیماتو پیروی وکړی او ددغو تعلیماتو په مطابق لاړشی نوځکه یـی ځینی داسې مدنـی قوانین وضع کړل چه د نکاح د عقد د فسخې اجازه ورکوی او ددغو قوانینو په اساس خپل عملی ژونـد وړاندې بیایـی . دکنیسې قواعد یـی پرېښودل او په هغه لار لاړل چه بشری مصالح یـی ایجابوی .

دکـنیسې پدغه نظام باندې ځینې خپله مسیحیان هم انتقاد کوی اوهغه د بشری مصالحو منافی بولی لکه چه یوانگریـزی فیلسوف علا مه (بنذام) په خپل (اصول التشریع) نومی کـتاب کښی داسې لیـکی :

د په رښتیاچه دایمی‌اوابدی واده دانسان له حال سره لایق اوله حاجت سره یې موافق‌اودکورنی له احوالوسره مناسب دی او ددې وړدی‌چه غوره کړی شی. خوکه چېرته‌بنځه‌یه‌مېړه باندې دا شرط کېدی چه له هغی څخه به نه جلاکېږی که څه هم ددوی به زړونو کښی نسبت یوبل ته دمینې اومحبت په ځای کراهیت او کینه پیداشی نو بیا د دغه کار تحمل او برداشت هیڅوك نشی کړی اوهرچاته به بد برېښی خوکه مونږ دکنیسی نکاح ته متوجه شودابه راته ثابته شی چه دغه شرط پرته له دې چه ښځه یې وغواړی دنکاح په عقدکښی موجوددی ځکه چه دکنیسې قانون نکاح په ابدیت‌حکم کوی اوداورته وایې‌چه تاسې دخپلې نېك مرغی په نیت سره یوځای کېږی خو یدې هم پوه شی چه تاسې یوې داسې بندی خانې ته ننوېستل‌کېږ ی چه دروازه به یې دابدپاره درپسې تړلې وی‌اوستاسې دوتو دپاره به هیڅ لاره نه وی اونه به دغه دروازه ستاسې په مخ خلاصه شی‌که څه هم یوبل ددښمنی اوکینې په وسله ووژنی». دغه فیلسوف ددغې‌وضع په‌تشریح اوتوضیح کښی وایې: «که چېرته مرګ یوازنی وسیله وای چه له دغسې ازدواجونه سړی ځان خلاص‌کړی نو هرومرو به دقتل انواع ډېرشوی‌اودقتل لاروچارو به پراختیا موندلې وای» خو له نېکه مرغه او حسن‌اتفاق نه مسیحیانوځینی داسې‌مدنی قوانین‌راوېستلی دی‌چه ددوی دپاره‌دطلاق دروازې، وازوی اولدې څخه نجات ورکوی‌چه دانتحاربه وسیله ځانونه له دغې بندی‌خانې نه‌وباسی.

دایوازې مسیحیان دی چه په شخصی احوالوکښی د خپل دین تعلیمات پرېږدی او دمدنی قوانینو پیروی‌کړ ی او نورټول ملل اونحل حتی برهمیان بوډایان ، بت پرستان اوآتش پرستان هم په شخصی‌احوالوکښی دخپلو ادیانو د تعلیماتو په مطابق روان دی البته کله ناکله‌لیدل کیږی چه په عینی احوالو کښی د خپل دین تعلیمات پرېږدی و دمدنی قوانینو پیروی کوی خودا هیڅکله هم لیدلی شوی نه دی چه دوی به په شخصی احوالوکښی‌لکه نکاح ، طلاق او داسې نورشول دخپل دین تعلیمات پرې ایښی اوسی‌اودمدنی قوانینو په لاربه‌تللی‌وی که څه هم ورته ممکنه ده چه په‌دغوشئوناتو کښی په عملی لارلاړ اودبشری طبعی په مجری‌روان شی.

خومسیحیان یوازنی خلك دی چه دخپل دین له عملی ناحیې څخه منکرشوی او په عمومی ډول بی خپل دینی تعلیمات په شخصی احوالو کښی او په خصوصی ډول یې دطلاق په باره کښی شاته اچولی دی ځکه چه دوی خپله په دې پوهیږی چه په دغه موردکښی ددوی دینی تعلیمات له واقع نه لرې دی او دانسانی طبع له ایجاب نه تجاهل کوی او په ژوند کښی دتطبیق صلاحیت نلری.

دمسیحیانو دینی وګړوو نشوکړی چه ددغه سیلاومخه ونیسی او هیڅ توان ونه موند چه دعقل، منطق اودژوند داړ تیاو په مقابل کښی ودریږی . ځکه چه د خلکو یومی اړتیا یوڅه او دکنیسی فتوی بل څه . نوځکه ناچار شول چه تولې چاری پرېږدی چه په خپلو مجراګانو کښی جریان وکړې اودخلکو داړ تیاو اومنطق په مطابق روان اوسی او په دې یې اکتفاوکړه چه کله ناکله دځینو حوادثو په مقابل کښی ستیژ ته راووزی اوځانونه ښکاره کړی . هغه هم دهغو حوادثو په مقابل کښی چه سیاسی شرایط اوظروف ددوی دظهور سره مناسب وی اودغه امور هم له کوم امیر، پادشاه اوکومل ی سړی پوری مربوط اوسی ترڅوچه دوی خپل موجودیت ثابت کړی او خپله دینی سلطه محفوظه وساتی. لکه چه د انګلستان داتم ادوارد په مقابل کښی یې دغسې وکړل. قصه داوه چه نوموړی پادشاه اراده وکړه چه هغه مطلقه ښځه په نکاح واخلی چه دده دزړه تخت یې اشغال کړی ؤ . په دغه وخت کښی ټول سیاسی شروط اوظروف ددغه پادشاه داخراج اودهغه دخواهشاتو دمخ نیوی دپاره مناسب شوی ؤ نو په دې موقع کښی کنیسی ځان ښکاره کړاو د خپلو اناجیلو وسله یې له تیکی را وویسته اودافارمول یې راوړاندی کړچه څوك چه له مطلقی ښځی سره نکاح کوی ، زنا کوی، نو ادوارد ته اختیار ورکړی شو چه خوښه ئی چه دغو خرافاتو ته ترزدی او خپل تخت او تاج ساتی اوکه نه دخپل عقل اوزړه منی اوله تخت اوتاج نه تیر یږی ؟ نوده عقل ته په خرافاتو ترجیح ورکړه اوله تاج نه تېرشو اودخپل زړه یې ومنله

عجبه لاداده چه دی هرچا په دې پیژانده اوخاص اوعام، کنیسه اوملت په دی خبرؤ چه دغه پادشاه له خپلی دغې معشوقې سره یوځای ژوند تیروی اومعاشرت ورسره کوی په داسی حال کښی چه دغه ښځه دخپل مړه دنکاح په قید کښی لاوه

اودده پهٔتصرکښې یی لوی لاس درلوده . خوسره لهدې هم نهملتخهوویل اونه
دکلیسا خلکوغوږ وښوراؤ اونهیې پهدغه وضع اعتراض اواحتجاج وکړ ځکهچه
دغه خبرې ددوی پهنـزد وړې اوبـې اهمیته ښکار یـدې اوځـه پر وا یـې
نه پـری کـوله .

خـوکوم وخت چهدهغې دطلاق مراسم پایته ورسیدل اوده دهغې نـکاح
کولوته تمایل ښکاره کړ اوویې غوښتل چهدهغې سره دخدای اود هغه دزوی او
روح القدس دسنت پهمطابق وادهوکـړی اودمیره اوارتـینې پـهشان معاشرت
ورسره وکړی نهدرږ فیق اورفیقې پهتوگه معاشرت. نوکلیسایی مخې تهودریده
اودینی وگړی ورته راپورته شول او ورتهوییلچـه «له مطلقې سـره نکاح
کـول زنا ده » .

عیناً هـمدغسی لهمارگریت داوسنیءملکې لهخورسرههموش؛ دې اراده وکره
چهلهیوهضابط «کاپټن تاونسند»سره چهددې هغهاودهغهداخوښهوه وادهوکړیخو
کلیسا راپورته شوهاوجنجال یی جوړکړ چهدغهضابط خپلهلومړنی ښځه طلاقه
کـړېده او «لههغه سره نکاح کول زنا کول دی» کهڅه همدغهطلاق دکلیسااو
مدنـی قوانینو پهمطابق پایته رسیدلیؤ ځکهچهد نوموړی ضابط ښځهدزوجیت
دخیانت مرتکبه شوېوه اود کلیسا په حکم یی طلاق جایز ؤ . او پر وتستانې
کلیساچه انگریزان یی منیپهدغسی حالاتو کښیطلاق جایزگڼی .

هـمدارنگه دکلیسا وگړی لهخپلو دغوکمعقلیو سرهسره ځان برالاته ډېرا
باسـیمگر داچه دغهراز امور لهکوم امیر، باد شاه اولویـړی پوری مربوط
اوسی اوسیاسی ظروفاوشرایط همددوی دظهور دپاره مناسب او مساعـد وی .
دوی پـهدغه اقدامسره لهموقع اوفر صت نهاستفاده کوی ترڅوچه خپل موجودیت
پهیوهبارز صورت کښی ښکاره کړی اوخپل دینی قدرت اوقدسیت ټولنیتهوښیی
چهددوی منزلت لهتخت اوتاج نهلوړدی اومرتبهیی دپادشا هانو لهمرتبی نـه
لـو ړه ده .

ترڅوچه په دې ترتیب دعوامو په زړونو کښې خاص مقام و نیسی او دهغوی شخصیې داستفا دې سلسله دوام ومومی .

ددوی په ربا کاری ترډې پورته بل دلیل پیدا کیدی نشی چه ددوی د زرګونو دغسی واقعاتو په مقابل کښې چه مطلقې ښځې او طلاقی وګړی ی نکا وې کوی او اروپائی اوامر بکاڼی محاکمې دتنفیذ امر ورکوی او ددوی دوړا ندې دغسی کارونه کیږی مګر ددوی غوږ نه ښوروی او نه خپل آواز پورته کوی .

ترډې په پورته بل دلیل شه وی چه انتونی ایدن دبرتانیې پخوانی صدراعظم خپله ښځه بـه قانونی توګه طلاقه کړه او بیایې بله ښځه و کړه چه تراوسه ورسره شته مګر له دې کبله چه سیاسی شرایط مساعدنه ؤ نو لځکه دکلیسې متو لیانو خپل غږ پورته نه کړ و نه یې اعتراض پرې وکړ .

دادی مسیحی نظام چه پله مسیحیانو پری ایښی او کومو خت چه ددغه نظام فسادورته ښکاره شو او هغه یې دواقعی ژوند سره موافق و نه لیده نو پرې یې ښودا و په هغه لار لاړل چه واقعیت ولری او دژوند د مصالحو مطا ق اوسی . خوسره له دې چه دوی پری ایښی دی بیاهم غواړی چه مونږ یې دځان په اره غوره کړو او پری لاړ شو او خپل اسلامی نظام پریږدو . په دغه خواهش کښې زمونږ فرنګی مابان ځوانان او نجونې هم ددوی دخیالاتو پیروی کوی او ناسنجیده یې منی او په دی نـه پوهیږی چه فرنګیان غواړی چه له اسلام سره خدعه او فریب وکړی او دهغه عالی اولوړ تعلیمات قبیح او بد معرفی کړی او منزلت یې ټیټوښیی او داسلامی ملتو نو به نزد دغه تعلیمات ناقص ښکاره کړی او به خپل دین باندی یـې بدګمان کا ندی .

کـله نا کـله ځینـی ساده لوحـی فـرنـګی مابان وایی چه مونږ دانه غواړو چه مسیحی نظام تعقیب کړو بلکه دا غواړو چه هغه غوره مدنی نظام غوره کړو او پری لاړ شو په کوم چه غربی ملتونه روان دی او دطلاق په مورد کښې یې دځان دپاره غوره کړی دی خودومره سنجش په کار دی چه دغه نظام دوی ته څه ګټه رسولی ده چه مونږ یې هم دځان دپاره غوره او ترې راواردیې کړو ؟ نه ! حقیقت دا دی چه څنګه چه ددوی دینی نظام ناقص دی همدارنګه مدنی نظام

بی هم پهدغه باره کښې چندا معقول او متین نهدی ځکهچه په هغه کښې دینی ملاحظات پهنظر کښې نیول شوی دی اوددوی ددین اومدنی قانون ترمنځ ددوی دکورنی اساسات ضایع شوی دی . بلکههمدا اوس پهډیرو کورنیو او قبیلو کښې دفامیل او کورنی ماڼی ړنګه شوې او لهفاسدو عناصرو نه برته بلڅه ورته پاتې نهدی .

دکورنیو نظامونوتهیی سلیم نظامونه ورکړ کیدی نشی اود کورنی بوهدف هم نشی تری اخیستل کیدی .

دطلاق پهمورد کښې د ری دخپلومدنی قوانینو پهباب دوهبرخیشوی دی اوهری ډلهیی دوهره تفریط کوی چهدازدواج د عقد احترام په هیڅ صورت نهساتی، پههیڅ قدس، حرمت او جلال ورته قایل نهدی اوپه ډیرو وړوکیو اوجزئی اسبابویی طلاقوالی شی . لکه چهدشمالی امریکی پهځینو ولایاتو کښې همدغسی وضع روانهده اودالری نهده چهسپا ښځه وکړی اوبیګایی طلاقه کاندی اوداپه حقیقت کښې هغهنهایی کوشش دی چهدانسانی اجتماع اوټولنې دنظم دورانولو اودکورنی داساساتو اوقواعدو دړنګولو دپاره پهډیره لاابالی اوبیپروایی کیږی .

اوهرڅه چهدوهمه ډلهده هغوی دطلاق پهمورد کښې نسبت کلیسا ته څه پراختیا راوستی ده خوسره لهدیهم دکلیسا لهتاثیرنه وتلی نهدی نوځکهطلاق پهمحدودو مواردو کښې روابولی اوهغه سختې لارې چارهیې ورته ایښې دی چهترڅوچه ډیره موده پرې تیره نشی او ښکسته پورته منځې ونه وهی دطلاق اراده عملی کیدې نشی لکهچهپه فرانسې اونورو معظمو کاتولیکی هیوادو کښې همدغسی حالدی .

دفرانسی مدنی قانون ترهغه وختهپوری طلاق روانهبولی ترڅوچه لهدغو درې گونو اسبابو نه یوسبب لهمیړه اولالهښځینه پیښ شوی نهوی . اول زنا دوهم لهاندازیوتلی توهین- دریم یولهدواړو زوجینونه پهداسیجزا محکومیدل چه اهانت تری معلومیږی . نومرض، بلآفت ، لیونتوب کـه څههم تجاوزته منجرشی اوداوږدې مودی غیبوبت ، اختلاف اوشقاق اوپهطلاق اتفاق کول او داسې نوریوهم دفرانسې د مدنیقانون له مخې دطلاقمجوز کیږی نه.

ددغو درې ګونو اسبابو له جملې څخه یو سبب چه په توهینې عقوبت محکوم
کیدل دی یوازې د مجرمینو په باب تحقق مومی او د دوهم سبب چه اهانت دی
اثبات دومره مشکل دی چه ترنن ورځې پورې ددغه سبب له کبله کوم طلاق
واقع شوی نه دی . نو له دې کبله هر څوك چه د طلاق اراده کوی کوشش کوی
او دلایل پیدا کوی چه د زنا په تهمت مقابل طرف متهم کړی او ثبوت ته ئې ورسوی
ترڅو چه د طلاق د پاره مجوز سبب پیدا شی . نو ځکه ټول هغه دلایل راټوی اوی
چه د قضاء د قناعت سبب وګرځی او که ثابت او حقیقی دلایل موجود نه وی نو بیا
زیار باسی چه له ځان نه دلایل جوړ کړی او حق او ناحق سره یو ځای کړی
او د دروغو دلایل محکمې ته وړاندی کاندی ترڅو چه په تفریق یې حکم وکړی
ځکه چه ددغو قوانینو له مخې نورې ټولې لارې پرې تړل شوی او له دې نه پرته
بله چاره نلری چه د زنا په تومت یې تومتی کړی او بالاخر د میړه او ښځې د پاره
د اولاد او ټولی کورنۍ او ټولو خپلوانو د پاره یې د ابدی عار او پیغور سبب
وګرځی خو سره له دې هم د طلاق مراتب پای ته رسیږی نه ترڅو چه هغه کمر شکن
او ملاماتوونکی مصارف په غاړه وانه خلی چه له لویو بدایانو او ثروتمندانو نه
پرته بل څوك یې له عهدی وتی نشی . او له یوې اوږدې مودې نه وروسته چه اغلباً
درې کلونه دربریږی اول په جسمی تفرقه حکم کاؤشی یعنی میړه او ارتینی ته
حکم ورکول کیږی چه یو ځای به نه سره اوسیږی او چه یو څه موده تیره شوه
نو بیا په طلاق حکم کاؤشی او یو له بله سره په کلی توګه جلا کیږی .

هم دغه وجه ده چه په دغو سیمو کښی رفیق او رفیقه بازی ډیره ده او میړه
او ارتینه له خپلو کورونو نه له خپلو اندیوالانو سره تښتی، دغه اوضاع اوس
په امریکا او اروپا کښی عادی امور ګڼل کیږی او د کورنی مسایل بی ارزښته
ښکاری او د صحیح نسب علایق د پلرونو او اولادونو ترمنځ د شك او تردد
مورد دی .

دادی ددوی مدنی نظم: چه یوه طایفه یې د ازدواج عقد ته په هیڅ تقدس، حرمت
او جلال قایله نه ده او ډیر ناچیز او جزئی اسباب د طلاق مجوز بولی او بله طایفه
بیا دومره تشدد کوی چه ترڅو چه دیوی یا بل غټې افتضاح مرتکب نشی او خپلی کورنی

ته ابدی پیغور وانه ړوی طلاق‌نه رواکـوی . یوه ډله دتفو یـطاوبله ډ لـه د افراط نهایـی درجې ته رسېد لې‌اوهره یوه یولوی شر راپورتـه کـوی او د کو ر نی فضا یې له منځ نه‌وړی. همدغه وجه ده چه دغرب دمسیحیت په معظمو ملتونو کښی دکورنی نظام وران شوی اودکورنی اود فامیل دمانې قواعد یـی په ورانیدو دی .

دغو ملتونو د طلاق په باره کښی ځکه د کلیسا فاسد نظام پرېښود چه دمدنی قانون په نظام لاړ شی خوهغه هـم پـه خپل فساد کښی د کلیسا لـه نظام نه کم نه دی او دکورنی د شئوناتو په مضطربولو او داخلاقو دعمارت په نړولو کښی دکلیسا له نظام نه بېرته پاتې کېږی نه .



نو اوس به د طلاق په باره‌کښی د هغوی د مسیحی او مدنی نظام فساد په ښه توګه درته معلوم شو ی وی او دا بـه‌هم درښکاره شوې اوسی‌چـه که مونږله دغودووتظامونو نه‌یونظام خپل ملك ته راولو(اولکه چه فرنګیان اوفرنګی مابان وایی هغه په خپل هېوادکښی عملی‌کړو) نو زمونږ دکورنی او نسب مانې به ونړوی اوټول اخلاقی مبادی به موله منځه یوسی .

هو ! دا ټولې خبرې مونږ ته ښکاره شوې اوښا یی چه‌مونـږ د طلاق په باره کښی دخپل اسلام نظام ته وګورو او ورسره مقایـه یـی‌کړو. هغه نظام چه فرنګیان‌اوفرنګی‌مآبان اعتراض‌پرې‌کوی اوګمان‌کوی چه هغه دمساوات په‌اسا س ولاړ نه دی دابه هم راته ښکاره شوې وی چه دوی په دغه انتقاداو اعتراض کښی په حقه دی او که په ښکاره ګمراهی کښی لوېدلی دی ؟

هو ! داسلام دین طلاق‌رواکړی دی. ځکه چه ددغه دین بنسټ پـد واقعی ژوند په اساس ایښودل شوی اوانسانی ټولې اړتیاوې یـې په نظر کښی نیولی دی د انسان په ژوند کښی ډېـر کرت داسې پېښېږی چه د طلاق تقاضا کو ی بلکه دغه‌کار دعائلوی او اجتماعی‌نظام داستقرارله ضروریاتو اوټاکلووسایلو څخه دی .

خو اسلام پدغه باره کښې ځینې قیود او تعلیمات لري چه د کـور نـې مصالح تامینوي یعنې اسلام طلاق ددې دپاره رواکړی دی چه د کـور نی نظام خراب نشي او هروخت چـه دغه ملاحظه تحقق و مومي د طلاق دپاره زمینه برابرېـږي . اسلام متعهد دی چه د مېړه او اورتې د حقوقو ترمنځ توازن اوتعادل موجود وي او دژوند په شئونو کښې یـې حقوق‌اوواجبات مساوي‌وي.

اسلام د نکاح له عقد نه د تقدس دیوالونه چارپېر کـړي اودتقدس پـه بوخښه‌کښې یـې راتاو کړي دي . په هغه جلال او بزرگۍ‌ورته قایل دی چه‌بل‌هیڅ عقدته قایل‌نه‌دی . هغه‌دخپلو پیروانو په‌نظرکښې په‌لوړنامه ښکاره کوي اوله‌نورو ټولو التزاماتویې لوړاوپورته بولي. اوله همدې کبله‌دغه‌عقد قرآن په هغه صفت یادکړی چه‌نورعقودیې‌په‌دغه‌صفت‌نه‌دی‌یادکړي.دنکاح‌عقدته یې‌غلیظ میثاق ویلی‌دی لکه‌چه‌فرمایـي «وکیف تأخذونه و قدافضی بعضکم الی بعض واخذن منکم میثاقاً غلیظا» یعنې تا سې به خپل ورکـړي مالونـه له خپلو مطلقوښځوڅخه‌بېرته‌اخلئ پداسې حال کښې چه تاسې‌استفاده ترې‌کړې او هغوی سختې وعدې او ټینګ عهدونه له تاسې نه اخیستي دي.

اوچه اسلام دغه عقد ته غلیظ میثاق او ټینګ عهدوایـي‌لدې خبرې‌څخه بـې نیازه دی، چه سړی ووایـي چه ناممکنه ده چه دغه عقد د اسلام په نظر کښې یوناچیزشی دی . بلکه دغه عقد د اسلام به نظرکښې ډېرېا ارزښته دی اوپه ډېره درنده سترگه ورته گوري او همدغه وجه ده چه اسلام طلاقیانوته ښه نه‌گوري اومسلمانان اړباسي او ترغیبوي‌یـې چه.ترڅوچه یـې وسه کېږي د طلاق مرتـکب نشي .

په دې‌موردکښې حضرت پیغمبر (ص) فرمائي«ابغض الحلال الی‌الله‌الطلاق»یعنې دخدای په نزد بدترین حلال اورواکـارطلاق دی، بل ځای فرمائي « تزوجوا ولاتطلقوافان الطلاق‌تهتزله عرش‌الرحمن» یعنې نکا وې وکړیء اوخپلې‌ښځې طلاقویء مه ځکه چه دښځوپه طلاقولو دخدای عر ش په‌لړزه راځي.

داسلام دین‌یوازې په دغه وعید اوزجراکتفاکړی نه ده بلکه د کـور نی

فامیل دنظام دپاره یې هغه لارغوره کړې ده چه ترڅوچه ډېر قوی ضرورت او قوی علت موجود نه اوسی ترهغه پوری طلاق قولو ته اقدام نه کیږی .

نو په دې ترتیب یې دا تثبیت کړی ده چه ترممکنه اندازی پوری ممکن العلاج اسباب او عوامل اصلاح کاندی او پری نږدی چه طلاق ته منجر شی، هغه اسباب چه دا صلاح قابل وی او هغه چارې چه په بشری کوشش سره تغیر موندی نه شایې چه طلاق ته مفضی شی. حتی هغه امور چه د مېړه له عاطفی او لاله کرکې پوری اړه لری اسلام ئې هیڅکله د طلاق موجب نه گڼی، نو ځکه اسلام داگڼلی ده چه مېړونو ته نه ښایی چه که دخپلو ښځو په نسبت یې عواطفو تغیر وخوړ او لاد هغو په نسبت یې په زړونو کښې کرکه او کراهیت پیداشو او لا په مجرد ددې چه دخپلې ښځې دځینو اخلاقو او ځینو احوالو په نسبت یې نشاط او سرور ته څه زیان و رسیده او دغو احوالو یې دین او شرف ته صدمه نه رسوله نو طلاقه یې کړی، ځکه چه دغه عواطف او پری را اوړی او تل تغیر خوری او دا صحیح نه ده چه د هغو له یوا و خطیر وامور دارمدار وگرځی چه د کورنی هستی پوری تړلی اوسی او دا هم ډېر امکان لری چه یوه ورځ به پری راشی چه همدغه ښځه به یې محبوبه وگرځی او تیر ترخه خاطرات به ټول هیر کاندی که مېړه دښځې یوه خلق ته بد گوری ښایی بل داسی خصلت هم ولری چه ښه یې ایسی او په همدی مورد کښی قرآن کریم فرمایی.

«وعا شروهن بالمعروف فان کرهتموهن فعسی ان تکرهوا شیأ ویجعل الله فیه خیراً کثیراً» یعنی له خپلو ښځو سره ښه گذاره وکړی او که تاسی د وی بدې گڼی او ددوی ځینی عادتونه مو نه خوښیږی صبر پری وکړی او ښایی چه په هغه کښی یو مصلحت وی او تاسی ته خدای د هغه په برکت ډېر خیرونه درکړی حضرت رسول الله (ص) فرمایی «لایفرك مؤمن مؤمنة ان کره منها خلقاً رضی منها خلقاً اخر» یعنی مسلمان ته نه ښایی چه خپلی مسلمانی ښځی ته دځینو غیر مطلوبو خویونو له کبله په کراهیت او کرکه وگوری او له نورو ښه صفاتو یې سترگی پټی کړی. یوه ورځ حضرت عمر ته یو سړی راغی او دخپلې ښځې د طلاقولو په باره کښی یې مشوره تری وغوښته حضرت عمر ورته وویل چه داکار مه کوه ! هغه سړی ورته وویل چه زه نو ځنکه وکړم چه دغه

ښځه مې نه‌خوښیږي نو حضرت عمر ورته و ویل « و یحك ا لم تبـن ا لبیو ت الا علی الحب فاین ا لر عا یة وا ین التذ مم ؟ ! »

یعنی افسوس دی پرتا اولا ته د تر حم وړ بی‌چه‌دغسي خبری کوی آ یا کـه کورونه یوا ز ی د مینی په اساس جو ړ شی نـو بیا ر عا یـت او د کــــو ر نی تـکـا لیف په غا ړ ه ا خیستل څه‌شو ؟ مطلب یی دادی چـه کــه چـېـرته په کـورنیو کـران تـمامیږی اولـه لاسه‌یـی پوره‌نه وی چه خپل کورونه دمینې په اساسی جوړ کاندی نو بیا ددی وړدی چه‌خپل کورونه په دوه نورو قوی ارکانو باندې بنا کاندی چه یو یـی هغه رعایت دی چه دکورنی دعواطفو او مراحمو درا وېښولو باعث گرځی‌اوټول اهل بیت اوکور والا خپلو حقوقو او وجایبو ته ملتفت کوی . بل رکن هغه تکلیف دی چه انسان یی دکورنی دتاسیس‌له‌کبله په غاړه اخلی ، هغه‌تکلف چه دکورنی دجمع دتفرق اودکور دبنا دنړولو اود اولادو د بـدبختی مانع گرځی، هغه تکلف‌چه دراتلونکو ډېروبدبختیو اوڅوند دتریخوالی دعواملو او موجباتو مخه نیسی یعنی مېړه باید دخپلې ښځی دځینو ناوړو اونامطلوبو اخلاقو په‌مقابل‌کښی له صبر اوزغم نه کار واخلی او دخپلې‌کورنی او خپل اولاد دبد بختی مخه ونیسی اوپه لوی لاس خپله کورنی تیته پرکه نکړی .

همدارنگه له هغه نظام نه چه‌اسلام دطلاق دمخ نیوی دپاره طرح کړی معلومیږی‌چه‌اسلام مېړه اوارتینې ته امرکوی چه که کوم وخت ددوی‌ترمنځ څه تنفر او خوابدی پیدا شوه نو بایده دی چه درحمت ، شفقت اوموافقت په دواعیوبې له منځه لرې‌کړی او پرې یې نږدی چه دتفریق او طلاق باعث‌یی وگرځی . پدې مورد کښی‌خدای‌فرمایی . « وان امرأة خافت من بعلها‌نشوزاً او اعراضاً فلاجناح علیهما‌ان یصلحا بینهما ، والصلح خیر » یعنی که کومه ښځه دخپل‌مېړه‌له‌بدخویی، جنگ اوروگردانی‌نه ډاریږی نو بیا پـه دواړو باندې‌گناه نشته چه مصالحه‌سره وکړی اوپه یوترتیب له ترتیباتو یی‌راضی کاندی که‌څه‌هم‌دبیسوبـه ورکړه اولاد مهر په تېرېد ووی اوصلح‌بهتره ده .

همدارنگه اسلام دطلاق دوقوع دمخ نیوی په غرض دا مقرره کړې ده

چه که دنر اوښځی ترمنځ څه اختلاف پیدا شو او دوی خپله ددغه اختلاف په حل کولو بریالی نشو نو کولی شی چه خپل باهمی اختلاف خپلو کورنیوته واچوی اوله هغوی څخه بی دحل لارې وغواړی : په دې ترتیب چه یو حکم (نماینده) دمېړه له خوااو بل حکم (نماینده) دښځی له خوا سره کښېنی او اختلافی مسایل ترڅیړنی لاندې و نیسی او ښه یی وڅووی اودحل لاریی پیداکړی ترڅو چه دنفرت او خصومت په ځای ددوی په زړو نو کښی جوړښت او توافق راشی او په مینه او صفاڅو ندسره و کړی حتی اسلام په دی باره کښی دشقاق او نفاق پیښیدو ته انتظار نه باسی بلکه په مجرد ددی چه ددی خبری خوف او وېره پیداشوه او دمېړه او ښځی له وسی نه ئی علاج بیرون وې نو باید سمدستی ددغو حکمـینو درولو ته اقدام وشی لکه چه قرآن کـریـم فرمایی:

« وان خفتم شقاق بینهما فا بعثوا حکماً من اهله وحکما من اهلها ان یریدا اصلاحاً یوفق الله بینهما ان الله کا ن علیماً خبیرا» یعنی که تاسی ویریږی چه دښځی او میړه ترمنځ به داسې مخالفت او لجاجت پیداشی چه ا صلا ح به بی دهغوی لـه وسی بیرون وی نو یو منصف دمېړه دخپلوانو او بل منصف هم دښځی له خپلوانو نه ورته ولیږی چه دهغوی داختلاف او شقاق عوامل وسنجوی او رفع یـی کـړی اومیړه او اورته بیرته پخولا کاندی که دغه دواړه منصفان دزړه لـه کومی دمیړه اوښځی داصلاح غوښتونکی وی خدا ی به تو فیق و ر کړ ی اوددوی (زو جینو ) ترمنځ به توا فق راولی . او پـا ك خدای په هر څه دانا او آگاه دی .

دا هم دطلاق دمخنیوی په غرض شوی ده چه اسلام په میړه باندی له طلا ق نه وروسته ځینی داسی درانده تکالیف ایښـی دی چـــه دطـلاق دو قـوع مخـه و نیسی .

دغه تکالیف او زحمتونه سړی ته اړ باسی چه صبر او زغم وکړی او پخـــوا لـه هـغه چه طلاق ته اقدام وکاندی خپل عقل او تدبیر په کـار واچوی اوښه یی وسنجوی اوددغه سنجش په نتیجه کښی له ضبط النفس څخه کار واخلی اودغه قبیح رواکار ته لاس وانه چوی.

اسلام دامقرره کړیده چه کوم وخت چه میړه خپله مابینه طلاقه کړی دستی باید دهغی مؤجل مهر ورکړی او ترڅوچه په عدت کښی وی دهغی نفقه، جامه او داستوګنی ځای ورکړی اوددهٔ دصغیرانو اولادونوساتنه هم ترڅوچه غټیبږیددی اوددی دخپلوانو پهغاړه ده چه احتیا جات یی باید ټول میړه له خوا تهیه شی اوحتی دحضانت او رضاعت حقوق لری چه دده اولادوته د تی ور کولو اجوره تری وغواړی.

لکه چه قرآن کریم فرمایی «فان ارضعن لکم فآتوهن اجورهن».

یعنی که ستاسو مطلقو ښځو ستاسو اولادونوته تی ورکاوٌنو په تاسی لازم دی چه دهغوی اجوره او مزدوری ورکړی،

نو هروخت چه دغو منصفانو ونشو کړی چه ددوی تر منځ توافق را ولی اوسره پخولا یی کاندی او پخوانی ټول وسایل موثر ثابت نشی او میړه دطلاقولو په عزم اصرار وکړی نو داپه دی خبره دلالت کوی چه ددوی ترمنځ ډیر سخت او یو داسی خطر ناك حالت موجوددی چه دکورنی استقرار تهدیدوی او د میړه او ورتی دزو جیت ژوند خپل ټول مقومات اووسایل له لاسه ورکړی.

نو پدی وخت کښی اسلام دکورنی مصلحت اودعمومی مصالحو دتامین له کبله میړه ته دطلاق اجازه ورکوی.

او حتی پهدی وخت کښی هم اسلام احتیاط غوره کړی اودطلاق دپاره یی داسی نظم وضع کړیدی چه میړه ته موقع ورکوی او زیاته فرصت مومی چه دفرقت په موده (عدة) کښی له خپل نفس سره محاسبه وکړی اوکه چیرته دپخوانیومشکلاتو دحل لاریی وموندهٔ بیرته له خپل قول نه وګرځی اودخپل پخوانی زوجیت ژوند بیرته شروع کړی.

اسلام مقرره کړیده چه ور وسته له هغه چه سړی دتوافق اومصالحت ټول وسایل له لاسه ورکړل اوطلاقولو ته مجبور شو نو بیا باید خپله ښځه په یوه طلاق طلاقه کړی اوهغه په هغه طهر کښی چه پهدغه طهر کښی یی وصلت ور سره کړی نه اوسی.

د ایی ځکه مقرره کړی ده چه په دغه وخت کښی چه ښځه له نسایی امراضو خلاصه او پاکه وی د انسان رغبت زیات ور ته کیږی او غالباً په دغسی موقع کښی میړه د ښځی طلاقولو ته اقدام نکوی مگر دا چه ډیر مجبور شوی اوسی او دا په دی دلالت کوی چه ددوی ترمنځ یو غټ خطرناك حالت موجود دی چه د طلاق تقاضا کوی،

نو کوم وخت چه دغه رجعی طلاق واقع شو نو میړه بیا د دوو کالو نو ترمنځ مخیر دی یو دا چه د عدة په شپو و رځو کښی بیرته رجوع ورته وکړی عدة د غیر حامله ښځو د پاره دری حیضه د دری میاشتو معادل، دی او اسلام طلاقی سړی ته له طلاق نه وروسته هم اوږد فرصت ورکړی دی چه له ځان سره مصلحت او له خپلی مطلقی ښځی سره کتنل وکړی ترڅو که کوم له اره پید اکړی چه بیرته سره یو ځای شی.

او دغه هدف ته د رسیدو د پاره اسلام مقرره کړی ده چه دغه مراجعه ډیرو اقداماتو ته اړه نه لری بلکه په یوه کلمه چه «رجوع می در ته وکړه» هم تما میږی.

په مچولو او غیر کښی نیولو هم دغه رجوع پای ته رسیږی او بیا یی د کډه ژوند د پاره لاره خلاصیږی ۰

او ددی د پاره چه د رجوع دواعی او بواعث ډیر اوسی اسلا م په میړه باندی واجبه کړی ده چه خپله مطلقه ښځه له خپل کاله نه د عدة په شپو کښی و نه باسی لکه چه خدای فرمایی «ولا تخرجوهن من بیوتهن ولا یخرجن الا ان یأتین بفاحشة مبینة» یعنی خپلی مطلقی ښځی له خپلو کورونو نه تر عدت ته پوری مه باسی او نه باید دوی خپله له خپلو خونو نه بیرون ووزی مگر دا چه د کوم برالا ناروا کار مرتکبی شی چه په دغه صورت کښی یی ویستل جایزدی .

قرآن کریم د مراجعت بهتری ته اشاره کوی او دزوجیت ، د بقا طرفدار دی لکه چه فرمایی .

«و بعولتهن احق بردهن فی ذلك ان ارادوا اصلاحاً» یعنی او د هغوی میړو نه

خپلوښځوته دعدت پهداخل کښې پهرجوع کولوسزا وارتردی پهدې شرط کهدوی دښه سلوك اراده لري .

دغه رجوع بې اصلاح وبلله چهپه واقع کښې پخوانی پیښه اصلاح کوی او کینهپهمینه بدلوی لکهچهقرآن همدغې خبری ته اشاره کوی «لا تدری لعل الله یحدث بعدذالك امراً» یعنی هیڅوك خبرنهدی شاید پاك خدای لهطلاق نهوروسته نوی څهراپیدا کړیاومیړه اواورته بیرتهسره ښهشی اودوباره دخپل کور ژوند نقشه طرح کاندی .

یعنی پاك خدای رواکړیدهچهانسان خپلهښځهپهطور کښې چهپهدغهطور کښې بې وصلت ورسره کړی نهاوسی طلاقهکړی اوبیایې امرکړیچهدغهمطلقه دې دخپل عدهموده دمیړه پهکورکښې تیرهکړی. داټولېبې ددې دپاره رواکړیدی ترڅو چهمیړه ته یواوزد فرصت پهلاس ورکړی چهپهخپل کارکښې تامل وکړی اوټول عواقب . اطراف اوجوانب بې وسنجوی اودمراجعت ډیربواعث پهلاس ورشي او پهزوجیت باندی دپاتې کیدو دواعی بې بیرته رجوع ته اړباسی اودخدای دارشاد پهاساس خدای نوی شی پیداکړی او دواړه خپل خیرپهخپل ازدواج کښې وګوری او دوباره سره یوځای شی اودخپلې کورنی دنظام دړنګیدو مخه ونیسی .

اودوهم امرچهمیړه ته روادی چهلهطلاق نه وروستهبې وکړی هغهدادی ـ چه خپلهښځه همدغسې پریږدی چهعدهیې تیرشی اولهده څخه پهباین طلاق طلاقه شی خوبیاهم اسلام کوشش کوی چهدغه زوجیت باقی پاتې شی اوهغه څهچه پیښ شوی دی لهمنځهلاړشی نولکه میړهتهاجازه ورکوی چهخپلهښځه بیرته راوګرځوی اودوباره بې پهنوی عقداونوی مهرپهنکاح واخلی .

نوکه میړهخپلې ښځی ته رجوع وکړه اولایې بیانکاح پریوتړله اوبیاددوی ترمنځ مخالفت پیداشو اولازم ولیدلشو چهبیایې طلاقهکاندی نوبیاهم بایدهغه ټول مراتب پهنظرکښې ونیسی اوعملیبې کاندی چهپهلمړی ځل کښې بې عملی کړیؤ ، همدارنګه اسلام داوارهم درجوع حق ورکړی اوددی مستحق بې هم ګرځولی دی چهکه رضایي شوهدعدة لهتیریدو وروستهدې بیاپه نکاح واخلی.

نو که دخپلی ښځې معاشرت تهبیرته وکرځیده اورجوع یې ورته وکړه او لا یې دعدة لهتیریدونه وروسته دوباره پهنکاح کړه اوبیایې هم طلاقه کړه نوله دی نه وروسته پهخپلهښځه باندی لهیوه طلاقه پرته بلځه حق نلری . نوکه دریم واریې بیاهم طلاقه کړهنودا بیاددی دلیل دی چهددوی ترمنځ کشید کی ډیره پراخه شوی ده اوددوی دواړه وکړه ګوند لهتحمل اوزغم نه وتلی دی اوهر وخت چهدوی دګډژوند اراده وکړی دژوند نظام بهیې مختل شی . نو پهدې وخت کښی اسلام ددوی په نهایی تفرقه اوجلاوالی حکم کوی او نوره ترهغه وخته پوری هغه روا کیږی نهترڅوچه دلمړنی عقد آثار بیخې محوه شوی نهوی . اوداهغه وخت تحقق مومی چهکوم بلځوک ئې پهنکاح واخلی .اوله وصلت نه ور وسته بی طلاقه کړی چهپدې صورت کښی کولی شی چهدغه ښځه بېرته دهمغه پخوانی مېړه په نکاح کښی راشی اوله دغو مره مودې اوتحولاتو ورو سته د نوی ژوند بنسټ کېږدی .

پدې مورد کښی قرآن فرمایی . « الطلاق مرتان فا مساك بمعروف او تسریح با حسان » یعنی هغه طلاق چه رجعت پکښی جایز دی دوه ځلی دی او له هغه ور وسته یا په ښه وضع د هغې ساتل اولا په ښه توګه د هغې خوشې کول دی . لدی وروسته بیا فرمایی « تلك حدودالله فلا تعتدوها ومن یتعد حدودالله فاولئك هم الظالمون. فان طلقها فلاتحل له من بعد حتی تنکح زوجاً غیره ، فا ن طلقها فلاجناح علیهما ان یتراجعا ان ظنا ان یقیما حدودالله ، وتلك حدو دالله یبینها لقوم یعلمون » دادی الیهی احکام نو باید له هغه نه تجاوز ونکړی او هرڅوک چه دخدای له دغو حدودو تجاوز وکړی هغه ستمګاران او ظالمان دی نو که چېرته یې خپله ښځه دریم وار هم طلاقه کړه نوله دریم وار طلاق نه وروسته تر هغه پوری لمړنی مېړه ته روانه ده ترڅوچه بل مېړه ونکړی. او که چېرته دوهم مېړه طلاقه کړه نوبیا په دوی باندې ګناه نشته چه دوی یوله بله سره نکاح وکړی پهدی شرط چه ګمان یې درلود چه دخدای احکام به برپای کړی شی .

اودغه الیهی حدود او احکام دی چه پاك خدای یی دخپلو پوهو او هوښیارو بندګانو دپاره بیا نوی او هغوی ګڼه تری اخلی. بل ځای فرمایی .

« یا ایها النبی اذا طلقتم النساء فطلقوهن لعد تهن» یعنی ای پیغمبره ! کوم وخت چه تاسي خپلی ښځي طلاقولي نوله عدة نه یی پخوا طلاقي کړیء یعنی دعدة په اوله مرحله کښی یی طلاقي کړیء. اوهغه وخت کېدی شی چه خپله ښځه په طهر کښی چه ورسره یوځای شوی نه وی طلاقه کړی. ځکه چه حیض او هغه طهر چه وصلت پکښی راغلی وی له عدة نه حسابېدې نشی . بیا فرمایی «واحصوا العدة واتقوا الله ربکم لاتخرجوهن من بیوتهن ولایخرجن الاان یأتین بفاحشته مبینة ، وتلك حدود الله، ومن یتعد حدود الله فقد ظلم نفسه، لاتدری لعل الله یحدث بعد ذالك امراً. فاذا بلغن اجلهن فامسکوهن بمعروف او فارقوهن بمعروف » یعنی او دعدة حساب و نیسیء اوله خپل خدای نه چه ستاسي روزنه کوی وویرېږیء اودهغه دهدایت په مطابق رفتار وکړیء. خپلي مطلقې ښځې له خپلو کور و نو نه مه باسیء او بایده دی چه دوی هم ونه وزی. مګر داچه بېرالا بدو کارو ته لاس واچوی .

اودادی د خدای ټاکلی حد وداوچاچه دخدای له ټاکلوحدودونه تجاوز وکړ په خپل ځان یی ستم وکړ. هېڅوك خبرندی چه شایی خدا ی وروسته لدې نه کوم نوی کار راپیدا کړی. نوکوم وخت چه ددوی دعدة موده پوره شوه نویایی په غوره توګه وساتیء اولایی په ښه توګه خوشې کړ ی ء چه لاړې شی .

امام مالك په موطأ کښی له نافع نه روایت کړی دی چه د عبدا لله ابن عمر (رض) د حضرت پیغمبر په زمانه کښی خپله ښځه دحیض پـه حا لت کښی طلاقه کړه نو بیاحضرت عمر له حضرت پیغمبر (ص) نه پوښتنه وکړه چه آیا دغه طلاق مسنون دی او که نه؟ نورسول الله (ص) ورته وفرما یل چه امر ورته وکړه چه بېرته رجوع ورته وکړی او بیادې تر پاکی پورې و ته وګوری ا و چه بیا حایضه او بیا پاکه شوه نو بیا یی که خوښه وه ودې ساتی او که خوښه یی وه نو پخوا له هغه چه ورته نـژدې شی په همدغه طهر کښی دې طلا قه کړ ی .

اوداهغه‌عدة‌دی‌چه‌خدای امر کړی‌دی‌چه‌په‌دغه توګه‌دې ښځې‌طلاق کړی‌شی لکه‌چه‌فرمایی «فطلقوهن لعدتهن»یعنی‌باید ښځه‌په‌هغه طهر کښی طلاقه‌کړی‌شی چه‌په‌هغه کښی‌میزه وصلت ورسره کړی‌نه وی .

دادی په‌اسلام کښی‌دطلاق‌نظام اوهمدغه دقرآن‌اوحدیث منصوصی‌اجراآت دی چه په‌دی باره کښی یی‌کړی‌دی . اوله‌دی صورت نه‌په‌غیر طلاقول له‌خدای روا کړی لاری‌نه مخالفت‌کول دی اوحتی‌څینی مذاهب دغسې‌طلاقونه دتفرقی موجب‌نه‌بولی اوداهغه مذاهب‌دی‌چه‌دکتاب اوسنت‌له نصوصوسره مطابقت لری. په‌دی‌خبره به‌له‌دی‌نه بل‌قوی دلیل‌چیرته وی‌چه‌حضرت پیغمبر دعبدالله ابن‌عمر طلاق‌ته اعتبار ورنکړ اوپه رجوع یی‌امر ورته وکړ . ابن‌جریح له‌ابوزبیرنه روایت‌کړی‌دی چه‌ده له‌عبدالرحمن ابن‌ایمن‌نه اوریدلی دی چه‌ده‌له‌عبدالله ابن عمرنه‌په‌دی باره‌کښی پوښتنه‌وکړه . هغه‌جواب‌ورکړ چه‌رسول‌الله (ص) دغه‌طلاق ردکړ اوهیڅ‌یی ونه‌ګاڼه البته‌دا منوچه‌حضرت عمر(رض) په‌خپل خلافت کښی دیرنوع طلاقونه نافذ کړی دی چه‌له دغه مجوزه نظام سره چه‌مخ کښی تیرشو برابرنه‌ؤ . له‌دی جملی‌څخه یوهم‌هغه‌طلاق دی چه‌یوه‌سړی خپله‌ښځه په‌یوه‌طهر اویوه مجلس کښی په‌دری طلاقوطلاقه کړه خوددې خبرې‌علت‌اوسبب‌داؤ چه‌په‌دغه زمانه کښی‌دخلکو له‌زړونونه دازدواج حرمت‌وتلی شانته‌ؤ اودیر طلاقونه‌واقع کیدل اوخلکوغوښتل‌چه‌په‌دی‌ترتیب‌خپلې‌ښځی وویروی‌اوخپله‌قوی‌سلطه‌پرې‌ومنی چه‌دهری وضع‌په مقابل‌کښی دمیړونو اطاعت وکړی نوحضرت عمراراده وکړه چه‌له‌دوی سره‌بالمثل معامله‌وشی اومجازاتاً یی‌طلاق صحیح‌وبولی ترڅوچه بل څوك دغسی‌کارونه‌کړی اود ازدواج احترام وساتی‌اودطلاق په‌کلماتواوالفاظو ټوقی ټقالې ونکړی اونه‌دغه حربه‌دملعبی په‌توګه دخپلو ښځو په‌مقابل کښی استعمال کړی .

نوځکه‌به‌یی‌هرغیر مشروع‌طلاق‌نافذا ؤاودوقوع‌حکم‌به‌یی ورکاؤ.دحضرت عمرله‌خوا دغه‌رفتار یوازی دیوه شرعی‌سیاسی الزام په‌توګه‌ؤ اوغو ښتل‌یی چه عمومی مصالح محفوظ پاتی‌شی اوزجراً یی‌عملی کړ ترڅوچه دهغه‌بدعادت‌مخه ونیسی کوم‌چه‌په‌دغه وخت‌کښی دخلکوترمنځ موجودؤ اوترڅوچه دهغو لوبو

له‌بدو نتایجو نه خلك وویروی چه‌د طلاق په کلماتو به‌خلکو کولې نه‌دا چه غوښته یې چه‌دشرع قانون‌ته تغیرور کړی اولا یې ددایمی قانون په‌حیث دمسلمانانو دپاره وضع کا ندی . ځکه چه‌اوس هم‌مسنون طلاق‌هماغه‌دی چه‌مخکښې یې تفصیلات تیر شول. په‌دغه قانون کښې چه‌اسلام‌دخپلو پیروانو دپاره وضع کړی‌دی منظور دادی‌چه خلك‌دخپلوازدواجونو حرمت‌وساتی‌نه‌دا چه‌ړې کار ته‌دساعت‌تیری‌او ټوقو په‌سترګو وکتل‌شی اوهر څوك داسی ګمان وکړی چه‌طلاق‌دده خپل‌حق‌دی اوپه‌هر وخت‌او هر څنګه چه‌یې وغواړی هغسی استفاده تری‌کولی شی . داسې‌نه‌ده بلکه‌دایو دقیق اومنظم تشریعی قانون دی چه‌دحکیم اوعلیم خدای له‌لوری ایښودل شوی دی .

دغه‌کار پاك‌خدای ددې‌دپاره رواکړی‌دی ترڅوچه خلك له‌حرج‌اوزحمت‌نه خلاص شی اودهغه‌شقاق اوبد بختی داری‌کولو دپاره مؤثر علاج ثابت‌شي چه په‌کورنیو کښی‌دمیړه اوارتینې ترمنځ پیښیږی .

ددغه‌کار قواعد او رسوم‌یې دعدالت په اساس‌ایښی اودصحیح عدالت‌په‌تله یې حدود ټاکلی‌دی. له‌دغوحدودو څخه یې تجاوز ناروا کړی‌اومتخلف‌یې‌ویرولې دی . هماوجه‌ده چه‌دطلاق‌ټول آیتونه‌دخدای دحدودو په کلمه‌پای‌ته‌رسیدلی او ددغوحدودو له‌تجاوز څخه‌یې‌خلك منع کړی دی.

ګوری‌ء!چه‌پاك‌خدای‌دطلاق‌دآیتونو‌په‌پای کښی فرمایی « تلك حدود الله فلاتعتدوها ومن‌یتعدحدودالله فاولئك‌هم الظالمون»او«تلك‌حدودالله بینها لقوم یعلمون» او«تلك‌حدودالله‌ومن‌یتعد حدودالله فقدظلم‌نفسه» او «ولاتمسکوهن‌ضراراً لتعتدوا، ومن یفعل‌ذلك فقدظلم‌نفسه‌ولاتتخذوا ایات الله‌هزواً»او«واعلموا ان‌الله یعلم‌ما فی‌انفسکم فاحذروه» دغه‌آیتونه‌چه‌ترجمه‌یې مخکښې‌له‌دې‌بیان‌شوی‌ده ټول دطلاق‌دآیتونو په‌پای‌کښې راغلی‌او مسلمانانو ته‌توصیه‌شوې‌ده چه‌دطلاق‌مقررات اودساتیر محترم‌وشماری اویوه‌ذره هم‌تجاوز‌ترې ونه‌کړی.

اوددې‌دپاره چه‌طلاق دخلکودپاره دیوې‌ګړی ساعت‌تېری او زود ګذرې خوشالی وسیله‌نه‌وی اوهم‌دمېړه دپاره درجوع فرصت‌او دمېړه‌اوښځې اقاربواو خپلوانو ته‌دمداخلې موقع‌میسره‌وی نوتصریح‌یې‌وکړه چه‌طلاق‌باید‌ددووشاهدانو

په مخ کښې واقع شي لکه چه قرآن کریم فرمايي «فاذا بلغن اجلهن فامسکوهن بمعروف او فارقوهن بمعروف واشهدوا ذوی عدل منکم واقيموا الشهادة لله ذا لکم يوعظ به من يؤمن بالله واليوم الاخر، ومن يتق الله يجعل له مخرجاً» . يعنې کوم وخت چه دښځو د رجعی طلاق د عدة موده پای ته ور سېده نو بيا هغوی لا په ښه شان وساتیء او لا يې په ښه توګه خوشي کړیء. او د طلاق په وخت کښې د خپلو کورنيو له جملې څخه دوه تنه شاهدان ونيسيء او هغوی دې هم د شهادة دادا په وخت کښې د خدای ملاحظه وساتي او په حقه دې شاهدی ورکړی. په دې حکم باندې پاک خدای هغو بندګانو ته پندورکوی چه په خدای او د اخرت دورځې په حساب او کتاب ايمان لري او څوك چه له خدای نه وېرېږي او د ټاکلو حدودو ملاحظه ساتی د هغه د پاره به د خلاصون لاره پيدا کړی او له جنجال نه به خلاص شي.

له دغو تفصيلاتو څخه دا په صراحت معلومېږي چه د اسلام دين د مطلقې ښځې په مورد کښې له هيڅ نوع رحمت او عاطفې څخه سپما کړې نه ده او کوشش يې کړی دی چه د هغې حقوق له اتلاف څخه وساتل شي او له هر راز ضرر او تاوان نه وساتله شي.

کوم معقول او رشيد نظم چه د دې د نفقې، حضانت او رضاعت په باب وضع شوی دی په هغه کښې د دې د حال رعايت شوی او کامله غمخوري يې شوې ده او په دې باره کښې قرآن کريم فرمايي. «واذا طلقتم النساء فبلغن اجلهن فأمسکوهن بمعروف اوسرحوهن بمعروف ولاتمسکوهن ضراراً لتعتدوا، ومن يفعل ذالك فقد ظلم نفسه، ولاتتخذوا ايات الله هزواً، واذکروا نعمة الله عليکم وما انزل عليکم من الکتاب والحکمة يعظکم به و اتقوا الله واعلموا ان الله بکل شيئی عليم واذا طلقتم النساء فبغلن اجلهن فلاتعضلوهن ان ينکحن ازواجهن اذا تراضوا بينهم بالمعروف، ذلك يوعظ به من کان منکم يؤمن بالله واليوم الاخر، ذالکم ازکی لکم واطهر، والله يعلم وانتم لاتعلمون» يعنې کوم وخت چه مو ښځې طلاقې کړې او خپل عدت ته ورسېدې نو بيا يې لا په معروفه او ښه توګه وساتیء او لا يې په ښه توګه خوشي کړیء» او د ضرر رسولو او تېری کولو په غرض يې مه ساتنویء او چا چه د غسې وکړل په خپل ځان يې ظلم وکړ . او د خدای په احکامو لوبې او مسخرې مه کویء بلکه د يوه جامع او مصلح دستورالعمل په توګه يې د خپل ژوند سرمشق وګرځویء او د خدای هغه

نعمتونه دریاد کړیء چه‌تاسې‌ته‌یې درکړی‌دی اوهغه‌مهربانی‌یی همه هېرویء
چه‌ستاسی درهنمایی دپاره‌یې کتاب‌درته رالیږلی‌اوپوهه‌یی درکړې ده چه
دهغه‌په‌واسطه تاسې‌ته‌پند درکوی،له خدای‌نه‌وو ډېرېږیء اوخدای احکام په‌ښه
توگه‌عملی کړیءاوکوم وخت‌چه‌تاسې‌ښځی طلاقې‌کړې اوخپل‌عدتونه‌یې پای‌ته
ورسول نوبیایې منع کویء مه‌چه خپل پخوانی مېړونه یه نکـا حوا خلی
په‌دې شرط چه‌دواړه په‌معروفه‌اوشرعی‌توگه‌بو دبل‌په‌نکاح‌راضی شوی‌وی . په‌دغو
نصایحو هغوکسانوته پندورکول کېږی اوپندتری اخلی‌چه‌په خدای‌اودقیامت
په‌ورځ اوددغې ورځی په حساب اوکتاب ایمان لری دغه کا رستاسی
دپاره گټور تر ټولو بهتر دی چه مطلقی ښځی له مېړه کولو نه
منع نه‌کړیءاودقرآن دارشاد په‌مطابق رفتار ورسره وکـړیء اوپاك خدای
پوهیږی اوتاسې‌نه‌پوهیږیء نودخپل‌خدای صوابدید اوهدایت دخپل دین‌اودنیا
دگټې وسیله‌وبولیء اویوه‌ذره‌هم‌له‌هغه‌نه مخالفت مه‌کویء اوبل‌ځای فرمایی.
«اسکنوهن‌من‌حیث‌سکـنتم‌من‌وجدکم،ولاتضاروهن لتضیقواعلیهن، وان‌کن‌اولات
حمل فانفقوا علیهن حتی یضعن حملهن ، فان ارضعن لـکم فاتوهن اجورهن
وأتمروا بینـکم بمعروف، وان تعاسرتم فسترضع له‌اخری» یعنـی خپلو مطلقو
ښځوته داستوگـنی‌ځای ورکړیء اوخپل توان په‌اندازه هغسی‌مسکن‌ورکړیء
چه‌تاسې پـکښی اوسیږیء.دهغوی‌دضرررسولو اراده مکویء ترڅوچه په‌هغوی
تنگسه راولیء اوپه‌عذاب‌یی کړیء . اوکه مطلقی ښځی حاملې‌اوبارداري وی
نوهغوی‌ته ترهغه وخته‌پوری نفقه او دژوند نور اولی ضرو ریات ورکـویء
ترڅوچه لنگی شوې نه‌وی . اوکه ستاسو اولادوته یې‌تی‌ورکاؤ نودرضاع‌اجرت
هم‌ورکویء اوپه‌مشوره اومفاهمه دغه‌کار پای‌ته ورسویء. اوکه‌یوله‌بل‌سره‌مو
سخت‌گـیری کوله اوتوافق‌ته سره و نه‌رسېدی نوکومه بله‌ښځه بـه‌دهغه رضاع
په‌غاړه واخلی اوبیا به‌مورد شکایت حق نلری .

دغه تفصیلات خوټول دهغه طلاق په‌باره کښی‌ؤ چه‌دمېړه اواورتې ترمنځ
ملاسته ولاړه اوکور داری شوی‌وی . ددغه طلاق په‌مقابل کښی اسلام هغه‌طلاق

همروا کړی‌دی چه دمېړه اوښځې ترمنځ ملاسته ولاړه همشوی نوی او پخوا لەوصلته دطلاق موجبات برابرشي اومېړه وغواړي چه‌خپله ښځه طلاقه‌کاندی اودواړه سره بیل‌شی اوخدای دهرچاوسیله وکړی اوهریو لـه خپل رحمت‌نه برخورداره کړی،سره لەدې چه‌مېړه هیڅ‌استفاده لەښځی‌نه کړی‌نه‌ده خوبیاهم اسلام پەمېړه باندی لازمه کړی ده چه‌نیمایی مهرورته ورکـړی که مهریی ورته ټاکلی‌ؤ او که‌نه نوباید چه‌متعه ورکړی چه مقدار بەیی‌دقاضی لـه‌خوا ټاکل کـیږی اوهغه بەدمېړه اقتصادی وضع اونور شرایط پەنظر کښی نیسی اوبیا بەیی ټاکی . لکه چه‌قرآن‌کریم پەدې باره کښی فرمایی ، « لاجناح علیکم ان‌طلقتم النساء مالم‌تمسوهن اوتفرضوالهن فریضة،ومتعوهن‌علی‌الموسع قدره وعلی‌المقتر‌قدره، متاعاً بالمعروف حقاً‌علی‌المحسنین ، و ان طلقتموهن من‌قبل‌ان‌تمسوهن‌و‌قدفرضتم‌لهن‌فریضة‌فنصف‌ما‌فرضتم‌الاان‌یعفون‌او‌یعفوالذی‌بیده عقدة‌النکاح‌وان‌تعفوااقرب‌للتقوی، ولاتنسو الفضل‌بینکم، ان‌الله‌بماتعملون‌بصیر» یعنـی پـه تـا سـې بـا نـد ې‌خـه گـنا ه نشتـه چـه خپـلـی ښځـی پخوا له دې چه‌ ورسره ملاسته ولاړه وکړیءاوخه مهر ور ته وټاکیء طلاقې کړیء. نوپه دې صورت‌کښی باید متعه و رکړیء چه په توانگرباندې د هغه د توان اوپه محتاج باندې دهغه دتوان په انداز ه متعه لازمېږی. دغه متاع باید په معروفه توگه دشرع په اساس ورکړه شی. اودا په نېکوکارانوباندې حق دی او نېکوکاران یی ورکوی. اوکه تاسې خپلې ښځی پخواله وصلت‌نه طلاقې کړې اویوڅه مهرمو ورته ټاکلی ؤ نو بیا لازم دی چه دټاکلی مهر نیمایی ورکړی مگر داچه ښځه ورته تېره شی‌اوخپل حق ور وبښی اولامېړه له خپل حق نه ورته تېرشی او ټول ټاکلی مهرورته پرېږدی او وروپی ښښی اوکه تاسې ښښنه ورته وکړیء نودا تقوی او مېړا نې ته نـژدی ده ، یودبل نیکی مه هېروی‌ء . پاك خدای (ج) ستا سې پەکړ وبینادی .

یوه نوع طلاق بل هم شته چه هغه‌ته خلع ویل‌کېږی او دمېړه اوښځی‌په توافق اومصلحت سر ه منځ ته راځی . پدې ترتیب چه‌کوم وخت چه مېړه او ارتینی خپله‌گذاره گرانه ولیده او دا خیا ل پیداشو چـه پدې وضـع او دې

شرایطوکښې دوی په نکاح کښې دالهیي ټاکلی حدودساتلی نشی نوبیا دواړه سره کښینی اوخپل عقد سره فسخ کاندی. ترتیب دادی چه ښځه بـه څه مال ورکوی اولابه له خپل مهراو نوروحقوقو ورته تېرېږی اودپیسوپه مقابل کښی بهخپل دغه جنجال ته خاتمه ورکوی ترڅوچه دخدای دټاکلوحدودومتجاوزین ونه گڼل شی. په همدې موردکښې قرآن کریـم فرما یی . « ولایحل لکم ان تأخذوامما آتیتموهن شیئاً، الاان یخافاالایقیماحدودالله ، فان خفتم انلا یقیما حدود الله فلا جنا ح علیهما فیماافتدت بـه، تلك حدودالله فلاتعتدوها، ومن یتعد حدودالله فاولئك هم الظالمون» یعنی تاسی ته روانـه ده چـه له خپلو مطلقو ښځو نه یو څه هغه مالونه بیرته واخلی چه ورکړی مودی مگردا چه د خدای (ج) د ټاکلو حدودو دنه‌رعایت کولو خوف مودرلود چه‌پدې صورت کښی په مېړه اواورته‌څه‌گناه نشته‌چه‌اورته‌یوڅه مال فدیه ورکـړی اوخپل طلاق ترې واخلی. داهم دخدای (ج) ټاکلی حدود دی نوتجاوزمه ترې‌کوی‌ء او څوك چه د خدای (ج) له ټاکلوحدودوتجاوزکوی هغه ظالمان دی‌اودخپل ظلم په سزا به ورسول شی.

دادی هغه رشید نظام چه اسلام دطلاق دپاره‌وضع کړ ی دی : نوبیاپـه څه فرنگیان‌اوفرنگی‌مآبان پدغه الیهی‌حکیم نظام باندې گوته ږدی اوانتقاد پرې‌کوی؟ دوی دطلاق په باره کښی د اسلام په عدم مساوات اعتراض کوی او وایـی چه : څنگه چه په نکاح کښی ددواړو موافقه شرط ده او ددواړو له موافقې نه پرته دغه عقدمنعقدکېدی نشی همدارنگه بایدپه فسخه اوالغاء کښی‌یـی‌هم ددواړو رضائیت اوموافقت شرط اوسی‌اودعقددیوه طرف په انحصار کښی نه وی. یودطرفینو ته د طلاق حق ورکول اوبل ته نه ورکول دتعاقد اودگډعقدله‌مقتضی‌نه‌لرې‌کاردی . سره له‌دې چه‌تعاقد ددواړوجنسو دمساوات تقاضاکوی‌اوسلیمه وضع هم دهمدې مقتضی ده چه باید دعقد په فسخه‌کښی‌هم دواړه برخه ولری او ددواړو خواو له رضائیت نه پرته باید انجام نشی. او لاڅنگه چه دغه حق یوه ته ورکول کېږی باید بل ته هم ورکړشی. دوی‌دغه اعتراض کوی خونور شیان په نظرکښی نه نیسی‌اولاسترگې پرې پټوی. دوی

پدې خبره ښه پوهیږي چه کوم وخت چه ښځې دخدای او رسول دسنت او
دشرع دحکم په مطابق د نکاح عقد قبول کړله نوبیا دغه حق نه تېره شوه او
دایې ومنله چه د طلاق واك او اختیار د به یې یوازې د مېړه په لاس کښې
وي اودا هیڅ حق نلري چه په دغه باره کښې سوال ووهي اوپه دې ترتیب سره
ښځې په خپله خوښه له هغو ټولو اختیاراتو او حقوقو تېرېږي
چه له طلاق پورې مربوط دي اودنکاح په عقد کښې له اشتراك نه منشأ اخلي .
نو کوم وخت چه مېړه دطلاق په باره کښې کوم تشبث کوي هغه په واقع کښې
دهغه رضائیت په اثر وي کوم چه ښځې دنکاح په عقد کښې ښکاره کړی اودغه
اختیار یې منلی دی .

دوی داهم نه وینې چه اسلام سره پدې باره کښې ډېرې دقیقې ملاحظې
شته اواسلام پوهیږي چه په ښځه باندې خپل عواطف دومره قوي دي چه ډېر
کرته یې دحق له جادې نه منحرفوي، هغه ډېره زر منفعله کېږي اوزر لاس له پښو
خطا کوي . بلداچه په ښځه باندې په طلاق کښې کوم مالي تاوان نشته اوددغو
اوضاعو ملاحظه داایجابوي چه ښځې ته باید په هیڅ صورت دطلاق په شان مهم
اوخطیرا ختیار ورنکړی شي اوکه نه وي نودکورنۍ ماڼۍ به تل په لړزېدو وي او په
ډېروجزئي عواملو اوزودگذروهوسونو به دکورنۍ بنسټ له منځه ځي او بېخې به ورانیږي
په داسې حال کښې چه نارینه هیڅکله هم دعواطفو طوفانی کېږي نه او
غالباً دتدبیر اوسنجش له مخې قدم اخلي علاوه له دې څخه هغه په دغه باره
کښې مالي تاوانونه په غاړه لري اوله دې کبله هم دغه کار ته په اسانۍ اقدام نکوي، دی
دکورنۍ قیمومیت په غاړه لري اودکورنۍ په چارو ډېر ښه پوهیږي . هغه یې ټول
ظروف اوشروط ټاکلی شي اودخپلې کورنۍ دمصالحو دایجاب په مطابق رفتار کوي
نوله دې کبله داپه حکمت دهمدې مقتضي شو چه دغه واك مېړه ته ورکړی اوداپه
حدودو او قیودو دملاحظې په مطابق رفتار وکړي . هغه قیود دادي چه ښځه
باید دمېړه دلاس بازیچه ونه گرځي اودهغې اودکورنۍ په ضرر تمام نشي . دکورنۍ
او خپله دښځې عمومي مصالح په نظر کښې ونیسي اوهغسې رفتار وکړي چه
خدای دحکم په مطابق وي لکه چه مخ کښې بیان شو .

سره له دی هم لکه چه مخ کښی بیان شو ښځه په ځینو مواردو کښی غواړی چه په دغه کار کښی له میړه سره شریکه شی او د خپل طلاق مطالبه وکړی حتی داسی هم کیدی شی چه ښځه د طلاق په وقوع کښی کامل اختیار ولری او دغه اختیار یې له میړه نه حاصل کړی اوسی .



په دی وختو کښی ځینی داسې مصری ، فرنګی مابان او فرنګی مابانې پیدا شوې دی چه د چارو او امورو متولیانو ته نصیحت کوی چه د دغه حق د میړه او ښځی له لاسه وباسی او د قضاتو په اختیار کښی یې ورکړی چه هیڅوك ونشی کړی چه په خپل سر خپلې ښځې طلاقې کاندی او هر څوك چه د طلاق غوښتونکی وی باید محکمی ته مراجعه وکړی او وروسته له هغه چه د طلاق قناعت بخش دلایل پیدا شول او د محکمی د قناعت مورد وګرځیدل نو محکمه به د دوی په تفریق حکم کوې او سره جلا کوی به یې .

دوی په خپل دې پیشنهاد سره غواړی چه مصر ته د طلاق په باره کښی د فرانسې مدنی قانون راولی او د خدای د شریعت په بدل کښی یې رواج کاندی که څه هم دوی خپل باطنی خباثت نه ښکاره کوی .

د افسوس خبره لا داده چه په دې ورځو کښې یوی حکومتی کمیټې هم په دغه باره کښی یو څه انتقادات کړی دی . خو مونږ په دغه باره کښی اروپائی قوانینو ته هم څه تعریض کړو او د هغو په شا وخوا کښی موخپلو لوستونکو ته څه لنډ شان ته معلومات ورکړو . په تیره بیا په دغه باره کښی د فرانسې مدنی قانون خو مو مفصل څیړلی او کافی معلومات مو عرض کړی او په قاطعو دلایلو موثابته کړی وه چه دغه قوانین د کورنی دمانی د ورانولو او د اخلاقی مقوماتو د له منځه وړلو باعث ګرځی . علاوه له دې څخه څنګه چه تجربه ښیی د طلاق مهم اسباب او عوامل هغه مبادی تمثیلوی چه اصلا اعلانیی درست او صحیح نه وی تر څو چه د کورنی کرامت ته صدمه ونه رسیږی او د هغوی اولادی ته آینده پیغور پاتې نشې نو که چیری مقرره شی او په خلکو فرض کړی شی چه تر څو چه یې دغه اسباب

د قاضیانو په مخ کښې اعلان کړی نه وي خپله ښځه طلاقولی نشي نو دوی به د دوه
او رونو ترمنځه سوزي او د دوه تیږو ترمنځ به اوړه کیږي.
نو لا به د خپلې کورنۍ او خپل اولاد نه افتضاح غوره کوي او هغه عوامل به
پټ ساتي چه د طلاق سبب کیدی شي او په هغه موجوده وضع به پاتې کیږي
چه نه یې انساني کرامت مني او نه یې فاضلانه اخلاق . هم د کورنۍ مصلحت منع ترې
راوړي او هم د اجتماعي ژوند بهبود او لا به د دغو اسبابو اعلانول غوره کوي
او په دې ترتیب به د خپلې کورنۍ، اولادې او ټول فامیل په دفتر کښې
عار او پیغور تسجیلوي او د خپلې کورنۍ په لمن به د پیغور توره داغ ږدي . په
داسې حال کښې چه د اسلام مقدس دین د مېړه او ارتینې ترمنځ د کورم
اختلاف پیداکید و په صورت کښې د تحکیم نظام په ډیره کریمانه او
شریفانه توګه تثبیت او مقرر کړی دی چه له دغسې پیغورونو او عارونو نه
مبري دی . اسلام دا مقرره کړې ده چه د مېړه او ښځې د اختلاف په
صورت کښې دې د تحکیم یو مجلس جوړ شي چه د مېړه او ښځې د خپلوانو یو یو
نماینده په کښې موجود وي او هر څوک د خپل قریب له خوا نماینده ګي
وکړي او د پېښ شوو اختلافاتو د رفع د پاره مناسبې لارې چارې
ولټوي . او څنګه چه مېړه او اورته نه غواړي چه په فضیح صورت سره د
هغوی د اختلاف اسباب ښکاره شي همدارنګه دغه خپلوان هم نه غواړي
چه د خپلوانو عیوب را برسیره کړي او د دواړو د کورنیو د عار او پیغور
سبب وګرځي بلکه دواړه کوښش کوي چه په یوه داسې توګه دغې موضوع
ته د حل مناسبه لاره پیدا کړي چه نه د دوی د کورنیو په لمن د پیغور
تور داغ پورې شي او نه یې ژوند په ترخه توګه دوام وموني. نو
څنګه چه دواړه په دغه کار کښې ځان شریک بولي او په ښه توګه یې د
حل په لار کښې زیار باسي .

له دې نه علاوه که موږ وګورو اسلام قضا ته هم په دې باره کښې
د مداخلې او ګوتې وهلو حق ورکړی دی په دې شرط چه ضرورت یې مقتضي شو او
د کورنۍ او عمومي مصالح تر هغه پورې متوقف او موقوف ولیدل

شو ل . مثلاًقا ضی حق لری چه په‌بعضی مو ا رد وکښی اکه د میړ ه دې یر غیبو بت ا ولاد عنت په صورت ،کښی ا و لا په ځینو نو روو مو اقعو کښی په مستقیم ډول د نکا ح په فسح حکم و کړی ا و ښځی ته ا جا زه ورکړی چه بل میړ ه و کا ندی تر څو چه یو ا نسان متضرر نشی‌اوحقو ق یی‌په‌تعویق و نه لو یږ ی .

د ادی په اسلام‌کښی دطلاق نظام. ا و څرنګه چه په‌هغه باندې قرآ نی او دنبوی ا حا دثیو ثا بت ا و صحیح د لا یل د لا لت کو ی د ادی چه په د غه روښانه لار کښی نه کږ و ا ی‌شته ا و نه پیچو می ،د غه نظا م‌په‌ډیرو متینو اسا سا تو ایښودل شوی ا و معقو لترین نظام‌دی چه د جامعې‌او کورنی ا خلاقی‌مقومات ساتی‌اودکورنی دکرامت رعایت کوی دغه جاده ډیره پراخه او سمه ده چه هیڅ وخت ا نسان پکښی ورك کیږې نه بلکه تل‌به په روښانه نور اوروښا نه هدایت روان اوسی .

په د غه نظام کښی دکورنی او ټولنې اومېره ا و ارتینې مصالح‌په نظر کښی نیول شوی اودهر یوه حقوق د تامه عدالت په اساس پکښی ساتل شوی دی ،چه یو بل به نه غو لو ی او نه به قوی په ضعیف باندی تیرې کوی .

نارینه ته بې یو څه فضا یل ورکړ ی ا و ښځی ته نورڅه .

ا وقرآن کریم دغه مطاب په ډیرولنډو بلیغو ا و واضحو عباراتو ا دا کړی دی. « و لهن مثل الذی علیهن با لمعروف وللر جا ل علیهن در جة» د ښځو د پاره په د وی با ندی د تکالیفو په ا ند ازه حقوق شته او څومره زحمت چه ګا لی باید په معروفه تو ګه هغو مره د ژوند له منافعو مستفیده اوسی او نا رینه په ښځو باندې یوه درجه فضیلت لری . نا رینه و ته پا ك خدای ځینی هغه فطری استعدادونه ورکړی دی چه ښځې تر ې محرومی دی او د همد غو ځینو فضا یلو له کبله نا ر ینه په ښځو با ند ې ځینی‌فضیلتونه ا و امتیاز ونه لری .

د اد ی د اسلام نظا م چه ر طلاق د پاره یی طرح کړی دی ا و څنګه چه ګورو دغه‌عمل‌هغه‌جر احی‌ته پاتې کېږی چه ترڅوچه له عملیا تو نه پرته

یی د جوړښت هیله وی نه اجرا کیږی اوچه نورې چاری پرې حصر شی نو بیا یی له تیغ لاندې واچوی او عملیات یی کړی. د افراط او تفریط تر منځ هغه اعتدال دی چه نه بی منا قدر ومره تنګ دی چه د هغه د حرمت له کبله یو کورنی په مشقت او مضیقه کښېولو یږی لکه چه مسیحیت یی وایی او نه دومره آزاد دی چه د هغو په اثر دازدواج میثاق، حلال او حرمت له منځه لاړ شی لکه چه د بعض غربی ملتونو نظام یې تقاضا کوی او نه دومره سختی او مشکلات لری چه د میړه او ښځې او دهغوی د کورنیو ددایمی عار سبب وګرځی لکه چه دیوځه نورو غربی ملتونو نظام یی ایجابوی. اولدې نه داښکاره او ثابته شوه چه کوم ښه شی چه دمملکت مصلح زعماء او پیشوایان یی په دغه باره کښی په خپلو وطنونو کښی عملی کوی او خپلو وطنوالو ته یی تقدیموی هغه دادی چه ددغو فرنګی مآبانو توقعاتو ته ترتیب اثر ور نکړی او کوشش وکړی چه دطلاق په باره کښی داسلام دمعقول نظام د پوهې دپاره زمینه برابره کاندی او په دغه باره کښی خپل اصلاحی اقدامات زمونږ د حنیف دین په اساساتو ودروی.



# دوهم فصل

## په اسلام کښی حریت

داسلام دین دټولو هغو عقایدو ، احکامو اودینی تکالیفو د ماڼی دپاره حریت ستنه گرځولې ده کوم چه یې دانسانانودپاره رالېږلې اوطرح کړی دی اوددغه حریت تطبیق یې د ژوندانه پـه ټولو شئوناتو کښی لازم گرځولی دی او دحریت ددغوڅلورو لاندېنیو ناحیوله جملې څخه یې یوه ناحیه هم هېره کړې نه ده اودهغو په حفظ او ساتنه یې حرص ښکاره کړی دی اوهغه دادی. سیاسی حریت . فکری حریت . دینی حریت ، مدنی حریت .

### ۱- سیاسی حریت

هرڅه چه سیاسی حریت دی هغه خو دادی چه اسلام هرعاقل اورشید وگړی ته حق ورکړی دی چه دیوه آزا دانتخاب په صورت دخپلو نمایندگانو په وسیله د حکومت او دولت دشئونو په اداره کښی گډون اود تنفیذیی قوې د اعمالو مراقبت وکړی اولاد عمومی رای گیری په وسیله دغه اجراآت وکړی.اسلام پدغه لارکښی هغه لار نیولې ده چه اوسنی ملتونه لاهغې درجې ته رسیدلی نه دی.اسلام دامقرره کړه ده چه دخلیفه ټاکل دخلکو وظیفه ده او صحیح خلافت همهغه دی چه دیوه آزاد بیعت اوآزادې رای گیری په نتیجه کښی منځ ته راغلی وی .

د همدې نجیبې دیموکراسی په اساس څلورواړوراشدینوخلفاؤ دحکومت واگې په لاس واخیستې اود خلافت څوکی یې ونیوې ،

حتی اسلام پدې باندې هم اکتفا نه ده کړې او په اجرائیه قوه یې لازم گڼلې دي چه د دولت مهم امور په خپل سر اجرا نکړي بلکه د هغو په اجراء کښې د مسلمانانو نظریاتو ته مراجعه وکړي او د شورې په اساس د هغو د اجراء د پاره تصمیم ونیسي. اسلام دغه قوه د ټولو مسلمانانو د پاره مسئوله گڼلې او په ټولو هغو امورو کښې ملت ته مسئولیت لري چه عمومي جنبه ولري .

پدې مورد کښې حضرت ابوبکر (رض) په خپله هغه لمړنی خطبه کښې چه د خلکو له پلوه خلیفه وټاکل شو داسې وایې « اې خلکو زه ستاسې له خوا په تاسې باندې والي مقرر شوم په داسې حال کښې چه زه له تاسې نه کومه بهتري او برتري نلرم ، نو که چېرته مو ولیدم چه په حق روان وم تاسې مې ملاتړ وکړئ او که په باطله او غلطه روان شوم ترې ومې ژغورئ. ترڅو چه ما د خدای (ج) اطاعت کاؤ او په حقه روان وم تاسې هم زما اطاعت کوئ او که د حق له لارې کوږ شوم نو زما اطاعت هم په تاسې لازم نه دی»

په یوه بله خطبه کښې یې داسې فرمایلې دي. « تاسې و پوهېږئ چه زه د خدای او د رسول د لارې پیروي او له ځانه څه نه جوړوم نو که په هغه لار برابر وم متابعت مې وکړئ او که ترې کوږ شوم نو راسم مې کړئ » حضرت عمر (رض) هم په خپله یوه خطبه کښې فرمایې « آگاه او دانا اوسئ چه هر وخت مو زه ولیدم چه له سمې لارې کوږ شوی یم نو راسم مې کړئ » ده چه دا خبره وکړه . یو سړي ورته راپورته شو او خپله توره یې له تېکې ورته راوښکه او ورته وېې ویل چه « که په تا کښې موږ څه کوږوالی ولید پدې توره به دې سم کړو » حضرت عمر دد ې سړي پدې خبره غبطه و خوړه او ډېر خوشاله شو او د خدای ثنایې وویله چه الحمد لله چه په مسلمانانو کښې لا داسې خلک شته چه عمر د خطاب زوی په توره په لاره برابروي . دا یې د مسلمانانو د یقظت او بیدارۍ ، رشد او هوښیارۍ او په نښه و بللو، او خوشالي یې پرې ښکاره کړه .

کوم وخت چه په حضرت عثمان (رض) باندې ځینې اعتراضونه وشول او دده غوږ ته ورسیدل نو بیایې د منبر په سر داسې وویل « زما له بدو کارو توبه ده او له بد کار نه مې لاس ښکلی دی . زه هیڅکله هغه کار نه کوم چه مسلمانان یې بد گڼي

هر وخت چه زه له منبر نه ښکته شوم او خپل کورته لاړم ستاسې سپین ږیری او مشران دې راشی او ما ته دی خپل رایه ووایی. زما دې په خدای قسم وی چه که حق ما غلامی ته ورسوی او د غلامی سبب مې و گرځی بیا هم زه به ځان د ذلیل ترینو غلامانو له جملی نه وګڼم او د حق پیروی به وکړم، او د همدی جلیلې مبدې د تائید د پاره پاك خدای خپل پیغمبر (ص) سره له دی چه صادق او امین ؤ او هیڅ کله بې هیڅ شی له ځانه نه ویل له استبداد څخه منع کړی او به دی یې مامور کړی ؤ چه د مسلمانانو په چارو کښی له دوی سره مشوره وکړی لکه چه قرآن کریم فرمایی دفبما رحمة من الله لنت لهم ولو کنت فظاً غلیظ القلب لانفضوا من حولك فاعف عنهم واستغفر لهم وشاورهم فی الامر» یعنی ته د هغه رحمت له کبله چه خدای ستا په برخه کښی کړی ؤ د مسلمانانو په مقابل کښی د نرم خوی خاوند شوې او که چیرته ، ته تر یو مخی او سخت زړی وای نو ارو مرو به دوی له تا نه تیت او پرك شوی وای نو ته د دوی په مقابل کښی عفو اختیار کړه او ښه نه ورته وغواړه او په کارونو کښی مشوره ورسره وکړه .

په مشوره کښی د حضرت پیغمبر (ص) قاعده داوه چه د خپلو ملګرو په رایه به ئې که څه هم هغه به دده د رأیې مخالفه وه اولا به یې اکثریت عملی کاؤ . لکه چه په یوه واقعه کښی همدغسی وشوا و هغه داوه چه بوه ورځ د جنګ د بندیانو په باره کښی حضرت پیغمبر (ص) له خپلو اصحابو سره مشوره وکړه چه دغه اسیران وو ژل شی . او که دفدیې په مقابل کښی خوشی کړی شی؟ اکثریت په دې و دریدل چه باید د فدیې په مقابل کښی خوشې کړی شی او عمر او سعد ابن معاذ وویل چه باید وو ژل شی . حضرت پیغمبر د اکثریت پیروی وکړه تر څو چه وحیې د حضرت عمر او سعد په رایه نازله شوه «ما کان لنبی ان یکون له اسری حتی یثخن فی الارض تریدون عرض الدنیا والله یرید الاخرة والله عزیز حکیم » یعنی پیغمبر ته نه ښایی چه په لاس کښی یې اسیران اوسی او هغه دفدیې په مقابل کښی خوشی کړی تر څو چه په ځمکه کښی ډیر قتل پیښ کاندی . تاسی د نیوی مال او متاع غواړی او پاك خدای ستاسې د آخرت د مصلحت غوښتونکی دی او خدای غالب او با حکمته دی .

اوداسلام دخلفاؤ اواميرانو داعادتؤ چه که کوم مهم کار به پيښ شواو په هغه کښې به يې خواني دستور موجود نه ؤ نو دهغې سيمې خلك به يې سره راټول کړل چه هغه هم به پوري مربوط ؤ اوله ټولونه به يې رأيه وغوښته او بيا چه به اتفاق پرې راغې اولا به اکثريت قايم شونو هغسې به يې کول او ديوه قانون په حيث به يې مانه داکار به يې ددې دپاره کاؤ چه داسلام دروح په مقابل کښې خضوع وښيي اود مشورې هغه مبداء تطبيق کاندې چه دين يې پرې مامور کړ ی ؤ .

له دې څخه واضحاً معلومه شوه چه دسياسي حريت دمبدې دتعقيب په لار کښې کوم قدمونه چه اسلام اخيستي دي او کوم حريت چه اسلام غوره کړی دی اوسني ديموکراسي ملتونه نه هغې درجې ته رسيدلي او نه به ورسيږي .

## ۲ـ فکري حريت

کوم موقف چه اسلام دحريت دلهږی نوع (سياسي حريت) په مقابل کښې غوره کړی ؤ هغه يې دحريت ددوهمې نوع په مقابل کښې چه فکري حريت دی هم غوري کړی او په دغو دواړو موقفونو کښې په څه توپير قايل نه دی . اسلام هرچا ته داحق ور کړی دی چه په هره لار چه وغواړی خپله رأيه ښکاره کړی اوداپې دمومنانو له ښکاره صفاتو اوبارزو مميزاتو گرځولې ده چه هرڅه وويني هغه ښکاره کاندی او برالاته يې راوباسي او په دغه باره کښې د چا له ملامتيانه ډار اوخوف ونلری. دغه مبدأ حضرت پيغمبر(ص) تعقيب کړی او له هغه وروسته خلفاء راشدين پرې تللي دي . په دغه ټوله دوره کښې دفکري حريت باغ او بڼ دتقدس په ديوالونو کښې محاط شوی ؤ او په ډير احترا م ورته کتل کيدل . لکه چه دغه روحيه دلمړی فقری له توضيحاتو په ښکاره ډول بريښي. ددغې طلايي دورې تاريخ چه داسلام دعالي مباديو دتمثيل روښانه مثا ل گڼل کېږی په ډې په واضح ډول دلالت کوی چه فکري حريت دبشري وگړوله فطري حقوقو څخه ؤ او اسلام په ډېره درنده سترگه ورته کتل . په دغه دوره کښې هېڅوك دا ښودی نشي او نه څوك اطلاع لري چه داولوالامرو له خوا به کوم داسې تشبث شوی وی چه دااراؤ په مجبوريت دلالت وکړی اولايې دخپلو دفکر آزادی سلب کړی وی . حتی نه يوازی دغه مبدأ دخلفاء راشدينو په طلايي دوره کښې

معمولەوه بلکه دبنی‌امیه‌و اودعباسیانو ددورې پەاوایلو کښی هم‌عمل‌پرې کېده اوفکری حریت‌ته پەدرنده سترگه کتل کېدل . پەدغو دواړو عصرو کښی خلفاؤ هیڅکله هم‌لەافکارو سره جنگ‌اوجگړه، مقابله اومبارزه نەکولەمگر لەهغو افکارو سره چەددولت سلامت‌بەیې تهدیداؤ اولابەیې دمسلمانانوترمنځ دفتنی اوربلاؤ ، بلکه پەدغو دواړو عصرو کښی درأیی دحریت پەنسبت دخینو خلفاؤ احترام دې درجې‌ته رسیدلې‌ؤچه پەدغه لار کښی بەیې د هرډول قیودو لەایښودلو نەډډه‌کولەاو بلکەلری‌کول بەیې دعمربن عبدالعزیز اودمامون‌الرشید او دنورو په دوروکښی به ددوی په حضور کښی خلکو په کامل حریت سره مناقشی‌کولې اودخلیفه دکورنی دافرادو په لیاقت او دخلافت په اهلیت‌کښی به سره غږېدل اورأئې به یې ورکولې.

په فکری حریت‌کښی هغه حریت هم داخل دی چه دوی‌ئی علمی حریت اولایې‌بودتفکیرحریت .ولی‌اوهغه هرچاته‌حق ورکوی‌چه‌خپله نظریه په علمې مسایلو کښی ښکاره‌کړی او ویې‌منی .

د فلکیاتو،طبیعیاتو اونورو مسایلو په شاوخواکښی بحثونه پـه هېڅ قید مقید نه ؤ اوهرچاحق درلودچه خپله نظریه ښکاره اوتبلیغ‌کړی . څنگه چه اسلام دفکری‌حریت طرفداردی همدارنگه علمی‌حریت‌ته هم په درنده سترگه گوری اوداسلام زمامدارانو په هېچا باندې دعلمی مسایلو په موردکښی‌کومه خاصه اومعینه نظریه تحمیل کړی نه ده اودهرچا د نظر ابرازته یـی موقع ورکړې اوپه احترام یـی ورته‌کتلی‌دی. دوی‌چه هرڅه پدغه ناحیه‌کښی‌کړی دی هغه دادی چه انسانی عقول یـی دکون اوکائناتوپه شاوخوا کښی دنظر کولو دپاره راپارولی او ټول انسانان یـې واداره کړی دی چه پدغوشئوناتو کښی تأمل وکاندی اوځانونه د طبیعت په اسرارو وپوهوی. دطبیعت قوانین کشف کړی اودکائناتو رموز راوسپړی. دهغوې په زړونو کښی یی د پوهې اوخبرتیا مینه ایښې‌اوکوشش یـی کړیدی‌چه‌په انسانی‌افکاروکښی‌دکنجکاوی حس ویښ اوسی. انسان یـی تل دې ته تشویق‌کړی دی چه تل دهغو امورو په شاوخواکښی تأمل وکړی چه دخپل دایمی تکررلەکبله اوله دې کبله چه تل

په یوه وتهره اویوه‌توگه روان ښکاری‌اوپه طبیعی توگه‌پوهېدل پرې‌گران وی دغه امور لکه دشپو ورځو تگ راتگ ، دلمر او سپوږمی طلوع او غروب ، دځلورگونو فصلونو بدلېدل رابدلېدل، د نباتاتو تکثر، او دحیواناتو توالد او تناسل شول. کوم وخت چه انسان خپل فکر دغو امورو ته معطوف کاندی دا ورته ښکاره شی چه دغه امور په تأمل ارزی اوانسان ته مجال ورکوی چه‌ددغو امورو په شاوخواکښی‌عملی‌څېړنې‌وکړی‌اوعبرت ترې واخلی لکه چه قرآن‌کریم فرمایی: «افلاینظرون‌الی‌الابل‌کیف‌خلقت؟ والی‌السماء‌کیف‌رفعت؟ والی‌الجبال‌کیف نصبت؟ والی‌الارض کیف‌سطحت؟» یعنی‌آیا دوی‌داوښ عجیب خلقت ته نه‌گوری چه څنگه پیداکړی شوی دی؟ او اسمان ته نه گوری چه څنگه‌پورته‌کړی شوی دی ؟ اوغرونوته نه گوری‌، چه څنگه درول شوی‌دي ؟

او ځمکې ته نه‌گوری‌، چه څنگه هواره کړی شوې ده ؟

«ومن‌آیاته الجوار فی‌البحر کالاعلام ، ان‌یشاء یسکن‌الریح فیظللن رواکد علی‌ظهره ان‌فی ذالك لا یات لکل‌صبار شکور» یودخدای دقدرت له نښانو څخه هغه دغرو په‌شان بېړی‌دي‌چه‌په‌اوبو کښی روانی‌وی ، که‌خدای وغواړی چه‌وی‌ دروی نوبادونه به‌ودروی نوبیابه درستې داوبو په‌سرولاړی اوسی . بېشکه چه‌په‌دې‌کښی‌دصابرانو اواحسان شناسو خلکودپاره دقدرت‌نښی پرتې‌دی . «اولم ینظروا فی‌ملکوت السموات والارض وما خلق‌الله من‌شیء» یعنی‌آیا دوی په‌آسمانونواوځمکې‌اوهغوټولو شیانو کښی‌چه‌خدای‌پیداکړی دی نه گوری ؟

«وآیة لهم الارض المیتة احییناها واخرجنا منها حباً فمنه یأکلون . وجعلنافیها جنات من‌نخیل واعناب وفجرنا فیهامن العیون» یعنی دوی‌ته هغه مړه‌ځمکه زما دقدرت لویه نښه‌ده چه‌بیرته یی راژوندی‌کوو اوبیا له‌هغې‌نه دانې‌را وباسو چه‌دوی یی‌خوری اوخپل معیشت تری‌تامینوی . اوپه هغی کښی دانگورو اوخرماگانو باغونه پیداکوو اوچینی‌پکښی راخوټکوو .

«سبحان‌الذی خلق‌الازواج کلهامما تنبت‌الارض ومن‌انفسهم وممالایعلمون وآیة لهم‌اللیل نسلخ‌منه النهار فاذاهم مظلمون . والشمس تجری لمستقر لها

ذالك تقدیر العزیز العلیم . والقمر قدرناها منازل حتی عاد کالعرجون القدیم لا الشمس ینبغی لها ان تدرك القمر و لا اللیل سابق النهار ، وکل فی فلك یسبحون وآیة لهم انا حملنا ذریتهم فی الفلك المشحون . وخلقنا لهم من مثله ما یرکبون» یعنی پاکی ده هغه خدای لره چه ټول شیان یی جفت جفت ، جوړه جوړه ، مماثل او متقابل پیدا کړی دی خواه دغه شیان گیاوې وی او که انسانان او لا هغه شیان چه دوی یی نه پیژنی .

شپه هم ددوی دپاره دخدای دقدرت یوه نښه ده چه له ورځی نه یې راوباسو چه بیا ناڅاپه دوی په تورتم کښی پاتی کیږی . لمر هم دخدای دقدرتونو یوه نښه ده چه تل په یوه نظام سره په خپل مدار کښی گرځی راگرځی او خپلی قرارگاه ته ځان رسوی . دا هغه خدای تقدیر دی چه په هرڅه غالب او دانا دی . او سپوږمی دپاره مومیین منازل ټاکلی دی چه هغه به په یوه میاشت قطع کوی او بیرته به خپل اولی حالت ته گرځی او لکه دخرما دوښکی دوچې څانگې په شان چه قوسی شکل ولری بیرته ښکاره کیږی . نه لمر سپوږمی لاندې کولی شی او نه شپه په ورځ باندې وړاندی کیدی شی . یعنی هر یو په خپل ټاکلی وخت او ټاکلی مدار کښی خیژی راخیژي او شپه او ورځ هم یوه په بله سبقت نشی کړی . او هر یو له دغو اجرامو په خپل مدار کښی لامبو وهی . زما دقدرت له نښو څخه یوه نښه داده چه ما دانسان زوزات په هغه کشتی کښی بار کړ چه د نوح (ع) دطوفان دپاره جوړه شوی وه او مونږ ددوی دپاره کشتی ته ورته دسورلی نورې داسې وسیلی پیدا کړی دی چه دوی به بیاپرې سپریږی .

اولم یروا انا خلقنا لهم مما عملت ایدینا انعاماً فهم لها مالکون. وذللناها لهم فمنها رکوبهم ومنها یأکلون» یعنی آیا دوی نه گوری چه مونږ په خپلو لاسو ددوی دپاره څلوربولی څاروی پیدا کړی دی چه دوی یی مالکان دی. او هغوی مو ددوی دپاره رام کړی دی چه په ځینو یی سپریږی او ځینی یی خوری . «الم تران الله انزل من السماء ماء فسلکه ینابیع فی الارض ثم یخرج به زرعاً مختلفاً الوانه» یعنی آیا نه گورې چه پاك خدای (ج) داسمان له لوری او به راپرې باسی

اوبیا هغه د ځمکې په چینو کښې بهوی اوبیا دهغو په وسیله بوټي ول ګښتونه زرغونوی .

« الم تران الله یزجی سحابا ثم یؤلف بینه ثم یجعله رکاماً فتری الودق یخرج من خلاله ، وینزل من السماء من جبال فیها من برد فیصیب به من یشاء ویصرفه عمن یشاء یکاد سنا برقه یذهب بالابصار یقلب الله اللیل والنهار ان فی ذالک لعبرة لاولی الابصار » یعنی آیا نه ګورې چه پاك خدای (ج) ووروه له یوه ځا یه بل ځای ته روانوی اوبیا دغه ټوټې سره نښلوی اوبیا متراکم او سر په سر وووره تری جوړ وی اوبیا به ګوری چه د باران څاڅکی به تری راوزی اود اسمان له لوری له هغو وریځونه او به نازلوی چه لکه غرونه داسې برتې وی اوپه هغو کښې ژلی وی اوهغه چاته چه خوښه یې شی دهغی ضرر رسوی اولایی تری بچوی. نژدی ده چه د بریښنا روښنائی یې دسترګو نور یوسی . خدای شپه اوورځ سره تبدیلوی په رښتیا چه په دغو کارو نو کښې د بصیرت دخا وندانو دپاره پوره عبرت شته .

« و من آیاته خلق السموات والارض واختلاف السنتکم والوانکم ، ان فی ذالک لایات للعلمین . و من آیاته منامکم باللیل والنهار وابتغاؤکم من فضله ان فی ذالک لایات لقوم یسمعوان .

ومن آیاته یریکم البرق خوفاً وطمعاً وینزل من السماء ماءاً فیحیی به الارض بعد موتها ان فی ذالک لایات لقوم یعقلون » یعنی دخدای د قدرت له نښانو څخه داسمانو نواو ځمکی پیدا کول اوستا سو د ژبو اورنګونو ګو ناګون بودن دی په رښتیا چه په دې کې نه عالمان او پوهان عبرت اخلي. اودایی هم دقدرت اومهربانیو له نښوده چه شپه اوورځ یې ستاسې دخوب اوکار روزګار لپاره مساعده کړې ده.

په رښتیا چه په دی کښې دهغو کسانو دپاره دقدرت نښې پرتی دی چه اوریدونکی غوږونه لری . داهم دخدای دقدرت له علامو څخه د ی چه برق او بریښنا یې ستاسې دخوف اوتمې سبب ګرځولي اوداسمان له لورې اوبه را نازلوی اوبیا مړه ځمکه بیرته پرې راژوندی کوی . په رښتیا چه په دې کښې دپوهانو او هوښیارانو دپاره دقدرت لویې نښې شته .

په دغوټولو اوداسې نورو ایتو نوکښې چه سړی ګوری قطعاًددې بوی مشام ته نه راځی چه اسلام دې یوه معینه علمی مفکوره منځ ته راوړې وی اودهغې منل دې ئی په چاتحمیل کړی اوسی بلکه کوم شی چه قرآن پتیلی هغه دادی چه ټول انسانی عقول تیزوی اولمسوی بی چه دکون او کائناتوظواهروته ځیرشی او ددغه جهان په شئونو کښې پوره تامل وکړی ترڅوچه هغه قوانین کشف کړی اوپه هغو غا مضو رموزوپوه شی چه ددې جهان اوددې نظام په طبیعت کښې په ودیعت ایښودل شوی دی اوچه په دغو اسرارو اورموزووپوهیدل بیا کولی شی چه هغه دخپل جهان د ودانی په لار کښې په کار واچوی. او بیا قرآن کریم هر فردته کامل حریت ور کړی دی چه د خپلې پوهې په اساس لاړشی اوهره عقیده چه وړته پیدا شوه هغه و منی او تعقیب یی کړی اودفاع ترې وکړی ،

نواوس به دادرته ثابته شوی وی چه درأیی حریت، دژبې حریت، داخبارونوازادی او داسې نورې آزادی گانې چه داوسنی دیموکراسی مدعیان یی دتا سیس ا و ترویج ادعاکوی په حقیقت کښی ددغې دیموکراسی له ترویج نه یوزراودوه سوه کاله دمخه داسلام مقدس دین دغه مبادی تردې په پراخترصورت وضع کړی اوپه ښه او مطلوب شان یی تطبیق کړی دی .

## ۳- د ینی حریت

د اسلام مقدس دین دحریت ددریمې نوع (دینی حریت) په برابر کښې هم هغه جلیل اوله سهوات او سماحت نه ډك اساسات تعقیب کړی چه ددووتیروانواعو په مقابل کښې یی غوره کړی . ؤ

ا سلام ددین اوعقاید و دحریت په باره کښې دخپلو عالی تعلیماتوله مخې درې مبادی وضع کړی دی چه نسبت اوسنیو تشریع گانوته چه دادیانو اوعقایدودحریت په لار کښې طرح شوې دی ډیرلوړ دی :

یوه مبدأ خوداده چه اسلام هیڅوك نه مجبوروی چه خپل دین پرېږدی او اسلام ومنی لکه چه قرآن په دې مورد کښې فرمایی. «لااکراه فی الدین قد تبین الرشد من الغی » یعنی په دین کښې زور او زیاتی نشته اوهیڅوك حق نلری چه په زور خپل دین په نوروو منی ځکه چه حقه لار له با طلی بیله شوې او هر

څوك كولی شی چه د عقل ا وپوهې په رڼا حق ته ورسیږ ی نه دا چه په زور مجبور کړی‌شی چه اسلام راوړی .

په‌همدغه مبدأ باندې مسلمانان روان ؤ اودنورواديانو له خلکوسره به‌ئی دهمدې مبدې په اساس ر فتار کاؤ. دوی به‌اجازه ورکوله‌چه‌دمفتوحه‌ښارونو خلك په‌خپلو اديانو اوعقايد وپاتې‌شی‌او داسلام دحکومت جز يه و رکړی او اطاعت يی و کړی اوددغې جز يې په مقابل‌کښی به ئی له هری‌اعتبد ء ا و هر تيری نه ساتل‌اود هغوی‌ټول‌احتياجات اوتامينات به‌يې‌پوره‌کول.د هغوی سر اومال‌مصونيت درلود اوله هرڅه په امان‌ؤ. دعقايدو،شعائرواومعابد واحترام به‌يې کاؤاوپه دينی چارو کښی به‌له‌کامل‌حريت نه برخورد ارؤ .

اوپه دې مورد کښی حضرت عمر‌په‌خپل هغه‌ليك‌کښی چه د بيت المقدس دښار له فتح نه وروسته يی دهغه ځای‌خلکوته استولې ؤ داسې فرمايی « د ا د هغه امان فرمان دی‌چه اميرالمؤمنين عمردايلياء خلکو ته ورکړی د ی . ددوی‌سرونه ،کليسا ګانې اوصيلبونه په‌امان دی . دخپلو اديانو په پر ‌ښودو به مجبورکيږی‌نه او نه به ضرروړته‌رسول کيږی »

کومه بله مبدأ چه په دی‌مورد‌کښې‌اسلام وضع‌کړې هغه په دينی مسايلو کښی‌دمناقشې‌اومباحثې آزادی‌ده.همدغه‌وجه ده چه پاك‌خدای‌تل مسلمانانو ته نصيحت کو ی‌چه دنور واديانوله خلکوسره دمناقشې اومباحثې‌په وخت کښی د عقل اومنطق په‌لاره‌لاړشی‌او ټوله اتکا يی په ا قناع بنا اوسی ، حجت په حـجت‌او دليل‌په دليل مات‌کړی او دخپل‌منطق په‌قوت‌خصم ته‌ماتې ور کړی نه په بل صورت .په‌دې موردکښی پاك خدای خپل‌پيغمبر(ص)ته داسې‌خطاب کوی. » ادع الی سبيل ر بك با لحكمة والموعظة الحسنة وجادلهم باللتی هی احسن » يعنې دخپل پروردګار لارې‌ته خلك‌په‌حکيمانه اودښې موعظی‌په توګه را وبوله اوپه‌ښه تو ګه مباحثه ورسره وکړه.

دمنطق اودليل له‌مخی قناعت ورکړه اوددليل په قوت يی خپلی مفکوری تـه راواړوه .

بل ځا ی کښی مومنانو ته داسی خطاب کوی ، «ولاتجادلوا اهل الكتاب

الا بالتی هی احسن » یعنی ای مومنانو ! له اهل کتابو سره مجادله او مباحثه مکوی‌ءمگر په‌ښه او معقوله توگه.

په‌بل ځای کښی دنورو ادیانو پیروانوته داسی‌خطاب‌کوی « قل‌ها توا بر هانکم ان کنتم صادقین »

یعنی که تاسی په‌خپله ادعاء کښی رښتینی یاستیء نوخپل دلیــــل مو راوړیء. بل‌ځای فرمایی : « هل‌عندکم من علم فتخر جوه لنا »

یعنی آیا په‌دی باره کښی تاسی څه علم اومعلومات‌لریء چه مونږ ته یی هم وښیی؟بل ځای فرمایی «قل‌ارأیتم‌ماتدعون‌من‌دون‌الله ارونی ماذاخلقوا

من‌الارض ام لهم شرک‌فی السموات ؟ایتونی بکتاب من‌قبل هذا اوآثارة من علم ان کنتم صادقین» یعنی‌ته ورته ووایه چه‌له‌خدای نه‌پرته‌دکو موشیانو

پرستش‌چه تاسی کوی‌ءهغه‌تاسی‌لیدلی اودهغو په‌شاوخواکښی موفکر کړی‌دی؟. مو نږ ته یی و ښیاست چه هغوی د ځمکی کو مه ټوټه پیداکړی ده اولا دآسمانونو په‌خلقت کښی بوڅه‌لاس لری؟که تاسی په‌خپله‌دغه‌دعوی‌کښی‌رښتینی یاستیء نو له قرآ نه د پخوانیو کتابو نو کوم دلیل ښکاره کړیء اولاکوم عقلی دلیل راوړی ء اوچه‌نه نقلی او نه عقلی دلایل‌لریء نوبیا په‌څه په غلطه لار ټینگار کوی ؟

دعباسیانو دخلافت‌په دوره کښی به‌خلیفه گانو په دینی مسا یلو کــښی دمناقشی او مباحثی مجالس تر تیبول اودهغوی په حضور کښی به په ډېره آزادی دغه بحثونه کېدل.

پدغو مجالسو کښی به‌دمختلفوادیانو اومذاهبو خلکو گډون کـــاؤ او دعــقایـــدوپه شئو نو کښی‌به یی بحثونه سره کول .

ادیان به یی سره تلل او موازنه‌کول‌به یی اوهرچا به خپل دلیل وایه اوهرچاخپله رأیه ښکاره‌کوله .

هرچا به په کامل حریت په‌کامله ډاډ گیر نه‌او امنیت خبر ی کو لی اوخپله مفکوره به‌یی وړاندی کوله‌حتی‌خلیفه گانو به‌نه‌یوازی‌دغه‌محفلو نه‌منعقد کول بلکه‌په‌مختلفوو سایلو،لاروچارو به‌یی‌علماء‌زړ ور کول‌اوخپله به‌یی هم پدغو مباحثو کښی گډون کاؤ.

دریمه مبدأ چه اسلام په دغه مورد کښی ایښی‌ده داده‌چه هغه ایمان یی صحیح او مقبول‌ایمان‌گڼلی‌دی چه‌دیقین اوقناعت له‌لاری حاصل شو ی اوسی نه دتقلید او پیروی‌له‌لاری .

په همدی ملاحظه داسلام دین هغه‌ټول قواعد له‌منځــــه وړ ی بدی چه پخوانی اکثره ادیان پری‌ولاړؤ چه هغه دتقلید او پیروی اودآزا د نظر او حر تفکیر د اهما ل‌قواعد ؤ.

او اسلام ټول خلك واداره کړی‌دی چه‌دخپلو عقایدو ستنی اودخپل‌دین داشاعی او نشر اساس عقلی دلیل او سلیم منطق وگرځوی .

اسلام خلك‌نظر اوتفکر، تأمل اوتدبرته‌رابولی اودی ته یی اړ با سی چه هرهغه شی چه علم یی‌نه منی اوپوهه یی تائیدوی نه هغه‌ایسته واچوی اوچـه دلیل عزت نه ورکوی اوبرهان ته متکی نه اوسی‌وی‌نه‌منی.

له‌همدی کبله دی چه دتوحید ډیر علماء‌پدی تللی‌چه‌دمقلد ایمان‌ایمان‌نه دی او نه منظو رید ی شی .

اوپاك‌خدای‌هم‌دمشر کانوله‌خوادخپلو پلرو نو کور کورانه‌تقلیدتر انتقاداوملامتی لاندی‌نیولی اوددوی له‌خوا دتفکیراو تد بر اهمال‌یی رټلی‌دی لکه‌چه فرمایی «واذاقیل‌لهم اتبعوامااانزل‌الله‌قالوابل‌نتبع‌ما الفینا علیه‌آباء نا اولوکان اباؤ هم لایعقلون‌شیأ ولایهتدون» یعنی‌کوم‌وخت چه‌دغو مشر کانوته وویل‌شی‌چه‌دخدای دمنزلو احکامو پیروی وکړی‌ه په‌جواب کښی‌وایی چه‌موږ دغه نه‌منوبلکه‌په په‌هغه لارځو چه‌پلرونه اونیکو نه مو پری تللی دی .کـه‌څه هم دد وی پلرونه په هیـڅ نه پوهیـد ل او نـه یی لا ره مـو ندلـی و ه بـلـکه هغو ی هم‌په‌گمراهی‌کښی روان‌ؤ خوسره له‌دی هم‌دوی په‌پښو‌ستر گو دخپلو پلرو نـو تقلیدکوی او خپل عقلونه اومنطق په‌کار نه‌اچوی : «واذا قیل‌لهم تعالوا الی ماانزل‌الله والی‌الرسول‌قالواحسبنا ماوجدناعلیه آباءنا اولوکان‌آباؤهم‌لایعلمون

شیأ ولا یهتدون » . یعنی او کوم وخت چه دغو مشر کینو ته وویل شی چه د خدای او رسول لاری ته راو گرځئ او راشئ، په جواب کښی وایی چه نه! مونږ ته زمونږ د پلرونو لار کافی ده ، که څه هم د دوی پلرونه په څه پوهیږی نه او نه سمه لاره موندلی شی. شیخ محمد عبده وایی د چه له هدایت او عقل نه پرته تقلید د کفار و کار دی او سړی ی تـرهغه و خته پوری مومن کیدی نشی چه خپل دین و نه پیژنی او د پوهی له لاری یی په مبادیو عقیده او قناعت را نشی . نو څوك چه بی علمه او عقله تسلیمیږی او بی له پوهی عمل کوی مومن کیدی نشی .

مقصد له ایمان څخه دا نه دی چه انسان د خیر او گټی د پاره لکه نور حیوانات تذلل و کړی او ذلت ومنی بلکه منظور دا شی دی چه د ایمان په برکت لوړ لاړ شی و د ایمان په وزرونو پورته والوزی . خپل عقل لوړ بوځی او خپل نفس ته د علم او پوهی په برکت ترقی ور کړی او بیا د خیر عمل و کړی په دی عقیده چه دا خیر دی د خلکو او د ځان د پاره یی خیر دی او د خدای په حضور منظو ریدی شی ، او همدا رنگه شر پریږدی او په دی عقیده چه شر بد عاقبت لری او د هغه مرتکب نشی».

## ۴ — مدنی حریت

له مدنی حریت نه د مدنی رشد هغه صفت مراد دی چه انسان د هغه په وسیله سره دالتزاماتو تحمل و کړی ی شی او په خپل سر د هر ډول نوع د عقودو د تـړلو واك او اختیار ولری، خرید او فروش ، هبه او تملیك وصیت او رهن او داسی نور عقود په خپـل سر نافذ کړی شی چه د دغه حریت په مقابل کښی رق او غلامی ده . او هغه داده چه د انسان لاس له مالکانه تصرفاتو لنډ وی ، د تملك اهلیت یی سلب شی او دی خپله هم د متاع حیثیت پیدا کړی او خپل بادار یی د یوی متاع په حیث استفاده تـر ی کوی .

ډیر وفرنگی لیکوالو په اسلام باندی خورده گیری کړی او تر انتقاد لاندی یی نیولی دی چه اسلام غلامی او مریی توب جایز کړی او د انسانی حریت د مانۍ دیوه لوی رکن د انهدام او ورانیدو سبب گرځیدلی دی .

د دغو خلکو په تردید کښی باید په دوه ټکو اتکا وشی : یو دا چه په کوم وخت کښی چه اسلام ظهور و کړ د هغه وخت اجتماعی او اقتصادی ټول شرایط او ظروف

ددې‌مقتضی‌ؤ چه هرحکیم شارع او قانون گذار بایدپه‌یوه‌نحوه له‌انحاؤ څخه مریی‌توب ته‌دوام‌ورکړی اوخپل ټول کوششونه دهغه دالغاء په‌لار کښی په‌کار واچوی اوپه ممکنه سرعت‌سره یی‌له‌منځه یوسی . دوهم ټکی دادی چه‌اسلام دمریی‌توب‌قانون‌په‌خپل حال جاری‌پرې ایښی‌نه‌دی مگرپه‌دی‌صورت چه‌هغه‌خپله ددغې و ضع دا ختتام باعث گرځی اوپه تدریج یی‌له‌منځه وړی .

اسلام په‌داسی وخت‌کښی ظهور وکړ چه‌په هغه وخت‌کښی مریی توب داقتصادی ژوند دټولوڅانگو دپاره دیوې مرکزی ستنې‌حیثیت درلوداودجهان دمختلفو ملتو دتولیداتو ټول‌فروع په‌هغې ولاړؤ اوله‌دی کبله‌عمومی مصالحو دا اجازه نه ورکوله چه‌په‌قطعی ډول دغه اساس لغو کړی او یودم یی له منځه یوسی .

ځکه‌چه دغسی کارونو ته لاس اچول ډیر کرته ددې باعث گرځی چه‌دغه اقدام‌شنډ اوبې‌نتیجی پاتی‌شی اودغسې اوامر له‌ابتذال اونه منلو اوله‌مخالفت سره مخامخ‌شی اوکه‌چیرته دغه‌قانون گذارته داقدرت میسروی اود قوت او غلبې‌ټول وسایل‌یی په‌لاس‌کښی وی اوکولی شی چه‌خپل اوامراوتصاویب په‌زور په ټول عالم‌ومنی بیاهم‌دی په‌خپل اقدام‌سره خپل‌اجتماعی او اقتصادې ژوندله یوې‌سختې ماتې‌سره مواجه کوی اودغه تشریع‌گی یوه‌داسې غټ ضرر ته مفضی کیږی چه‌دانجام اوعاقبت بدی‌به‌یی تردې‌کمه نه‌وی چه‌په‌دی عصرکښی په‌یو ناڅاپی توگه بانکونه اوسهامی شرکتونه لغوه اولا دکار گرانو استخدام ممنوع کړی‌شی اود کارخانو مالکان په‌دی مکلف‌شی چه‌خپله خپلی‌فابریکی و چلوی او لاد وسپنو دکر بنو اود بخار استخدام باطل کړی شی . نوڅنگه چه‌اوس ددغو وسایلو الغاء دنړی اقتصادی اواجتماعی نظام‌ورانوی همدارنگه هغه‌وخت دمریی توب دقانون کلی او ناڅاپی‌الغاء دهغه‌وخت دخلکوداقتصادی او اجتماعی نظام دورانیدو باعث گرځیده نوځکه اسلام یودم دې‌کارته اقدام ونکړ بلکه‌درق اومریی‌توب دله‌منځه‌وړو دپاره‌یی داسې ترتیبات ونیول‌چه‌په تدریج سره ورو ورو‌خپله له‌منځه لاړشی اوپرته له‌دی چه‌دیوه بدعکس العمل باعث وگرځی بایدپه داسې توگه‌یې له‌منځه‌یوسی چه‌دبشری جوامعو اقتصادی

اواجتماعی منافعوته صدمه ونرسیږی حتی‌داسې چه‌څوك دڅوند دمجرا په‌تغیر
یوه‌قدرې هم‌نشې ، کومه‌وسیله چه‌اسلام دغه‌هدف‌ته درسیدو دپاره غوره کړی
اوهغه دنتیجی اواثر له‌مخې ډیره‌ښه ؛ بلیغه‌او محکمه وسیله‌ده داده‌چه‌اسلام
ټول هغه عوامل ترفشار اوتنګسې‌لاندې نیولی‌دی چه‌رق او مریی‌توب ته‌دوام
ورکوی اودنشوې اونماباعث یی‌ګرځی ، او دهغو ټولو منافذو اومجا ری‌و
دتوسیع اوپراخولو دپاره یی‌مجاهدی کړی دی چه‌حریت اوآزادی راولی او
مریی توب له‌منځه‌وړی اوپه‌دغه باره‌کښی داسلام رویه‌هغه‌ته ورته‌ده چه‌یوسړی
دیوی‌ویالی داوبو دمجرا دپاره ډیری ویالی وکیښی اوډیر بناخونه تری بیل
کړی اوبیاپه سربند کښی اوبه‌تری وتړی ، په‌نتیجه کښی به‌ضرور دغه ټولې
ویالی‌وچی شی‌همدا رنګه اسلام درق او غلامی په‌مورد کښی همدغه رویه
غوره کړی ده : له یوی‌خوایی دتحریراو آزاد ولو دپاره ډیری لاری
طرح کړی اوله بلی خوایی درق منبع قطع کړی ده تر څو چه
دهغې‌ویالې په‌څېر ورو ورو وچه‌شی اوریښه‌یی پاتې نشی په‌همدی توګه
اسلام ضمانت اوتعهد کړی‌دی چه‌دمسالمت له‌لارې رق اوغلامی له‌منځه یوسی
او خلکو ته یی موقع ورکړې ده‌چه‌په‌فرصت سره په تدریجی توګه له دغه
نظام نه‌ووزی .

داسلام دظهور په‌وخت کښی درق اومریی‌توب اسباب او عوامل ډیر او
متنوع ؤ خومهم‌یی دغه لاندېنی اوه‌عوامل اووسایل دی .

یوسبب‌یی جنګ‌ؤ . چه‌دجنګ داسیرانو مصیر اوعاقبت‌خواه دغه جنګ
به‌داخلی‌ؤ اوکه‌خارجی لامریی‌توب‌ؤ اولامرګ . دوهم سبب‌یی سبیه، تښتول
اواختطاف‌ؤ . ددغو تېریواواعتداء‌ګانو له‌قربانیانو سره به‌دجنګ داسیرانو
معامله کیده اودمریی توب کړی به‌یې دهغوی په‌غوړونو کښی اچوله .
دریم سبب‌یی دځینو لویو ګناو لکه قتل، غلا اوزنا شوه مرتکب کیدل‌ؤ اود
دغسی ګناو په‌مرتکب‌به ددولت‌له‌خوادمظلوم‌اولادهغه دکورنی‌دمصحلت‌په‌غرض
دغلامی حکم‌کیده اوغلام به‌ګڼل کیده . څلورم سبب‌یی دپور له‌اداکولو
څخه دپوروړی عاجز کیدل‌ؤ اودداین دمصلحت دپاره به‌په‌مریی‌توب‌محکوم

کــېده پنځم‌سبب‌يې په‌اولادباندې دخپل پلاردسلطې قايمول‌ؤ اوپلارته په‌رواوه
چه‌خپل زوی دمريانو پـه‌څير خرڅ کړی اوخپل نور ضروريات پرې تامين
کړی . شپږم سبب‌يې په‌خپل نفس باندی د شخص دسلطې جاری ساتل‌ؤ او اړ
سړی‌ته په‌رواوه چه‌له‌خپل حريت‌نه تنزل وکړی او خپل ځان ديوه مقدارپيسو
اوټنګو په‌مقابل کښې وپلوری اواوم سبب‌يې دمريانو زېږول‌ؤ په دې ترتيب
چه‌دمينځو زامن به‌مريان ګڼل کېدل که څه‌هم پلرونه به‌يې اصيل‌ؤ .

دغو اسبابو اوعواملو دکثرت له‌کبله دمريانوشمېرهم‌مخ په‌تزايدؤ اوهره
ورځ به‌زياتېدل . حتی په‌اکثرو ښارونو کښې به داحرارو او اصيلو وګـړو
له‌شمېر نه دغلامانو اومريانو شمېر زيات‌ؤ .

اسلام په‌داسې وخت اوموقع کښې راغی چه‌درق‌اومريی‌توب اسباب،عوامل
اووسايل په‌همدې قوت او کثرت سره موجودؤ خواسلام له‌دوه سببونونه پرته
نورټول سببونه لغو کړل اويوازې دارثی رق اودجنـګ مريی‌توب يې باقي
پرېښود . خودغو دواړو سببونوته‌يې هم‌داسې شروط اوقيود وضع کړی دی‌چه
دمريی توب دتکثرچينې وچوی اوپه‌لږموده کښې‌يې له‌منځه وړی . مهمترين
قيديې چه‌ارثی رق‌ته‌ايښی‌دی هغه‌دادی چه‌دوينځو هغـه اولاد و نه چه دخپلو
سيدانو اوبادارانو له ګنډې نه‌وی هغه احرار اواصيل دی اوهره وينځه چـه
له‌خپل بادار نه اولاد راوړی اوبادار هـم‌دغه ولدخپل زوی لـور و بولی هغه
حرېيدا کېږی اودپخوانيو دودونو په‌څير غلام‌کېږی‌نه . اوکوم وخت چـه
مونږ په‌دغه مورد کښې ښه‌ځيرشو دابه‌راته څرګنده‌شی چه‌دوينځو اولادونه
اکثره دهغوی له‌بادارانو نه‌وی ځکه غنيان اوبډايان خلک چه وينځې اخلی
اوساتی‌يې بل‌منظورنې نه‌وی پرته له‌دې چه‌خپله استفاده ترې‌وکړی . اودايه
هم‌راته څرګنده شی چه‌دغه قيد چه اسلام دارثی رق دپاره وضع کړی داپه
خپله ددې خبرې متکفل اوضامن دی چه‌په ډېره لږه موده کښې به‌ددغسی نوع
رق اومريی‌توب ريښه‌وچه‌شی اوله‌منځه به‌لاړه‌شی
او ددوهمې نوع غلامی دپاره چه يـې کوم مهم قيد وضع کړې دی هغه دادی
چه دهغه جنګ اسيران يـې ترې مستثنی کړی دی‌چه د دومسلمانانو طايفو

په جنګ کښې یودبل لاس ته ورغلي خواه دغه اسیران باغی طایفې ته منسوب وی او که بلې طایفې ته. اوهرڅه چه هغه نور جنګونه دی چه دمسلمانانو او نورو ترمنځ وی نو په هغو کښې یې هم ډېر قیوداو شروط ایښی دی چه مهم قیدیې دادی چه دغه جنګ شرعی وی . یعنی اسلام اجازه ورکړې وی او د اسلام د جنګ د قوانینو په مطابق وی او داسلا م دزمام دار له خوا اعلام شوی وی. او اسلام له درې حالاتو نه پرته په بل هیڅ صورت کښې لـه هیڅا سره جنګ جایـز نه ګـڼی لمړی حالت: دفاع ده لکه چه قرآن کریم فرمایی « وقاتلوافی سبیل الله الذین یقاتلونکم ولاتعتدوا ان الله لایحب المعتدین» یعنی او دخدای (ج) په لار کښې له هغو کـفارو سره جنګ وکړ ه چه دوی جنګ درسره کوی یعنی که چاجنګ درباندې راووړ تاسې باید دوطن له ناموس څخه دفاع وکړ ه او خپله تېری تجاوز مکوه چه خدای متجاوزین نه ګڼی .

دوهم حالت : د عهدماتول دی او داسلام دد ین په ضد توطئه او کـیداو فریب کول دی. لکه چه قرآن کریم فرمایـی « وان نکثوا ایمانهم من بعد عهدهم وطعنوافی دینکم فقاتلوا أئمة الکـفر انهم لاایمان لهم لعلهم ینتهون » یعنی که دوی له عهد نه وروسته خپل قسمونه اولوړې ماتې کړی او ستاسو په دین باندې یې طعنونه ویل او سپکـېـی یادا ؤنو د کـفرله پېشوایانو سره وجنګېږ ه بې شکه چه دوی په خپلو عهدونو اولوړو وفانه کوی او نه پرې درېږی نو جنګ ورسره وکړ ه ترڅو چه له خپلې سر کشۍ او ستاسې په دین بانـدې له طعن ویلونه لاس واخلی اوسم شی .

دریم: داچه لاداسې عوامل اوموجبات پیداشی چه داسلام دولت تهدیدوی چه په دې صورت کښې دخپل دولت دسلامت او دفتنې دوژلو دپاره اسلام جنګ جایـز بولی لکه چه قرآن کریم فرما یـی :

« وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة ویکون الدین لله ، فان انتهوا فلاعدوان الا علی الظالمین» یعنی له هغوی سره ترهغه پورې وجنګېږ ه چـه فتنه اوفساد له منځه لاړشی او یوازې الیهی دین مطاع وی ، نو که دوی له فسادنه و ګرځېدل

اوسمې لارې ته راواوښتل نودهغوی له جنګ نه لاس واخلیء او له ظالمانو پرته په بل چا تجاوز نشته .

څنګه چه‌داسلام‌له تاریخ نه معلومیږی دحضرت‌رسول (ص) ټول جنګونه له دغو حالاتو څخه وتلی نه ؤ خواه دغه جنګونه یې له عربو سره ؤ او که له یهودو ، رومیانو اونورو سره ؤ . نو که چرته جنګ روانه ؤ او له دغو حالاتو نه په غیر اعلان شوی‌ؤ اولاپه هغو لارو او طرقو اعلان شوی نه ؤ چه اسلام وضع کړې دی اولا داسلام د زمامدارله خوا اعلان شوی نه ؤ نـودغسې جنګونه دهغو داسیرانو درق اومریی‌توب باعث ګرځی نه حتی ددغوشرایطو با وجـود هم اسلام رق داسارت او دستګیری له حتمی او لازمـی لوازمـو نـه ګـڼی بلـکه د امام دپاره یـی رواکـړ ې ده چـه پـه اسیر بانـدی احسان‌کیدی اوښه ورسره وکړی اوله عوض‌نه پرته‌یې خوشی کـړی اولایـی دفـدیې په‌مقابل کښی خوشی‌کړی اولا بالمثل هغه معامله ورسره وکـړی چه‌د اسلام له‌اسیرانو سره ددښمن له‌خواکیږی اولاییوی معینی‌جزئی په‌مقابل‌کښی ترې تیر شی اوپه دغو ټولو صورتونو کښی اسیرپه‌رق اومریی توب محـکوم کیږی نه‌بلکه قرآن‌کریم له‌دی څخه‌ږده کړی‌ده چه دهغوامورو په‌جمله‌کښی چه پادشاه‌ته داسیرانو په‌باره‌کښی روادی رق هم ذکرکاندی بلکه یوازی په احسان اوفدیه‌یی اکتفاء کړې‌ده لکه‌چه فرمایی: « فااذا لقیتم‌الذین کـفروا فضرب الرقاب حتی‌اذا اثخنتموهم‌فشدوا الوثاق فأمامناً بعد واما فـداءً حـتی تضع الحرب اوزا رها »

یعنی کوم وخت چه له کـفارو سره مقابل شوېء نو ورمهږو نـه یـی ووهیء ترڅوچه ډېر موترې ووژل او ومونیول نوبیایـی کلك بندیان‌کړیء نو له‌هغه وروسته لا احسان اوښې ګـڼه ورسره وکړیء اولایـې دعوض په مقابل کښی خوشې کړیء ترڅوچه‌خپله دجنګ وسله وغورځوی اوسوله اوامنیت قایم شی له‌دی څخه ظاهریږی چه‌اسلام داسیری درق اوغلامی په‌برابر کښی هغه لا ر تعقیب کړی‌ده‌کومه چه‌دارثی رق‌په‌مقابل کښی‌ئی‌تعقیب کړې‌وه. اودغه‌رق یی هم په‌داسی قیودومقید کړی‌دی چه‌دهغه داساس دورك‌کولو متکفل‌لیدل کیږ ی

اسلام رق اومریی‌توب دحرب اوجنګ لازمه نتیجه نه‌ده ګڼلی بلکه‌یو له‌هغو مسالکویی ګڼلی‌دی چه‌پادشاه‌یی دلزوم په‌وخت کښی عملی کاندی‌اوپه‌دې باره کښی‌یی کوم ترغیب کړی نه‌دی بلکه دهغه په‌غیرتې ترغیب کړی دی . البته داسلام په‌ابتداء کښی دغسې جنګونوته ضرورت‌ؤ اوډیر پیښېدل اما کوم وخت چه‌اسلام تقررومونده اوله‌نور وملتوسره‌یی روابط قایم شول نود ابیا ډیره لږه پیښېده چه‌دجنګ شروط دې فراهم‌شی اوجنګ‌دی ونښلی. اودد ې معنی داده چه‌اسلام دغه‌نوع رق اومریی‌توب دیوې ټاکلی مودې پورې رواکړ ی دی .

داوه داسلام‌رویه چه‌درق اومریی‌توب‌دوسایلوپه‌برابر کښی‌ئی‌غوره کړې‌وه: چه‌له دووسببونه پرته‌یی‌نورټول‌اسباب لغوه‌کړی اودغه‌دوه‌اسباب‌یی هم په‌داسی قیودو مقید کړی‌دی چه‌دغلامی دچینو دوچولو متکفل ګڼل کېږ ی اوپه‌لږه موده کښی به‌یی بیخ اوریښه‌و چه‌کاندی .

له‌دغو ټولو کوششونونه علاوه کومه طریقه چه اسلام دمریانو دتحر یـر اوعتق په‌باره کښی غوره کړې‌ده په‌دې ډیر ښه دلالت کوی چه اسلا م دهغوی په‌تحریر اوعتق ډیر حرص لری .

له‌اسلام‌نه په‌خوا دعتق اوتحریر لارې او منافذ داسی تنګ‌ؤ چه‌په کلونو کلونو به‌هم دغلام دآزادېدو مسئله منځ‌ته نه‌راتله اودمولا له‌رغبت‌نه پر ته‌بله هیڅ‌لارېې نه‌درلوده اوچه دمولا به‌خو ښه شوه څپل غلام به یې آزاد کړ اوبل عامل نه‌ؤ چه د غه کارته منجرشی اوله‌دې‌نه پرته‌غلام په‌دې محکوم ؤ چه دی اوده اولاده ترابده‌پورې مریان پاتې‌شی . حتی‌داسی ډېرشرایع اوادیان‌ؤ چه باداران به‌یی دغلامانوله‌آزادولو منع کول مګرپه‌خاصو حالاتو کښی.تر څوچه‌به ټول شرایط موافق شوی‌نه‌ؤ اوډیر معقد اوسخت دینی اوقضائی اجراات به‌یې په‌غاړه اخیستی‌نه‌ؤ ترهغه وخته‌پورې به‌یی‌نشوکولی چه‌څپل‌غلامان‌آزاد کاندی له‌دې څخه علاوه کوم‌وخت به‌چه‌کوم بادار کوم غلام آزادکړ ددولت له خوا به‌له‌هغه څخه غټ مالی تاوان‌اخیستل کېده اوعتق به‌ددولت دحقو قو له‌جملې څخه د یوه‌حق ضایع کېدل ګڼل کېده .

اسلام پەداسې وخت کښې‌راغی چەدعتق منافذ پە د غسې مضیقە کښې ؤ اوشروط یی دغسې‌سخت اومشکل ؤ نوبیایې ټولدغە قیود پایمال کړل اولە منځەیی یوړل ، دغلامانو دحریت اوآزادولو دپارە یی دروازې پرا نستلې اوپەزرگونو فرصتونەیی ورتەمیسر کړل.دعتق اوآزادولودپارەیی دومرەاسباب فراهم کړل چەځینی‌یی هم‌کافی دی چەپەلنډە موده کښې دغلامې اومریی‌توب نظام لەمنځە یوسی .

اسلام داهم دعتق لەاسبابو وگرځاؤ چەکە دبادار لەخولې‌نە پەهر صورت اوهرترتیب یوداسی عبارت ووت چەصراحتاً یې دغلام پەعتق د لالت‌کاؤ نوهغە پری آزادیږی کەځەهم پەخطاسره وی، اولاپەټوقە او پە دروهنە ، خواه ددغې خبری دوینا قصد ولری اولابی‌ارادی تری‌ووزی ، پە خپل ا ختیار دغەخبره وکړی اولاپە زورمجبور کړی شی ، پـە عادی حال وی‌اولامست وی پە دغو ټولو صورتوکښی غلام پرې‌آزادیږی او نورحق نلری چە لە هغە څخە د متاع پە حیث استفاده وکړی اوداوضح‌داښیی چە اسلام هیلە لری چە دْ غلا مانو عتق تەکومە پلمە پیداشی .

همدارنگە یې دا هم د عتق لە اسبابـو گرځو لـی د ه چـە د بـادار لە خولې‌کە یوه داسې کلمە ووتە چە دغلام‌پەتدبیری‌ـی دلالت کاؤکە څە هم دغە خبره پە هرصورت‌اوهرترتیب وی غلام یـی مدبر کیږی‌اوبیایـې خرڅولی نشی او نە یـی هبەکولی اوتملیکولی شی. تدبیر دقفە پە اصطلاح‌کښی دې‌تە وایـی چە باداروواـیی چە زماغلام دې زمالە مرگ نە وروستەآزادوی. اوچە بادار دغە کلمە ووایـی نور غلام لە متاعیت نە ووت اوپە مجرد ددی چـە دبادارسترگې یـی پټې شوې دی دیوه حرانسان پە څیر ژوندکړی شی. اوکە چیرتە دغە مدبر وینځە اوسی نودغە حکم یـی هغە اولاد تە هم سرایت کوی چە لە تدبیرنە یـی وروستە زیږوی نودبادار لە مرگ نە وروستە دغە وینځە لە خپل ولدسره یو ځای آزادیږی او دا حرارو پـە دلەکښی ځای نیسی کە څە هم د بادار ورثە راضی نە اوسی .

داهم پە اسلام‌کښی دعتق لە اسبابو څخە گڼل شوې ده چەوینځەچەلەخپل

بادار څخه اولادراوړی اوبادارهغه خپل اولاد وبولی. پدغه حالت کښې دغه ولد له موره اصیل او حرزېږي لکه چـه پخوا مو وویل او مور یـې هم دحریت استحقاق پیداکوي اودبادار له مرگ نه وروسته آزادېږي اودفقه په اصطلاح دغې ښځې ته ( ام‌الولد) ویل‌کیږی اود ولادت له اولې ورځې نه له رقیت‌او وینځی توب نه تربوې اندازې وزی چه خرڅول، هبه‌کول‌اوتملیکول یـې‌جایزنه دی اودبادارله مرگ‌نه وروسته دستی‌آزادېـږی اودیوه حرانسان په څېر دټولو انسانی حقوقو مالکه گرځی .

داهم په اسلام‌کښې دعتق له اسبابو څخه دی چه بادارخپل مریـی‌مکاتب کاندی. یعنی دواړه اتفاق وکاندی پدې باندې چه‌که غلام یومعین‌مبلغ پیسې بادارته ورکړې له غلامی نه به آزاد اوسی. اود دې دپاره چه دغه مر یـی زروکړی شی‌چه دخپلی‌غاړې‌پور ئی‌خپل‌بادارته ورکړی‌اودغلامی کړی له خپل غوږ نه وباسی د اسلام دین ددغسې غلامانو له پاره دمال دحصول ډېرې لارې چارې لټولی اوله هغه سره یـی دکومك‌کولو ډېر موارد پیداکړی دی اودغه ټول په دې په وضاحت دلالت کوی‌چه اسلام دغلامانو په‌آزادولو سخت حرص لری‌لمړی یـی هغه ته اجازه ورکړې ده چه داحرارو په‌شان هرډول‌تصرفات وکړی شی، تجارت، کښت اوکر، خرید اوفروش، اجاره اوهیکه داری اونور ټول وسایل‌یې‌ورته مباح کړی دی ترڅوچه له دغې لارې پیسې پیدا کـړی او د خپلې‌آزادی په لارکښې‌یـی ولگوی . ټول مسلمانان یـی په دی خبره ټېز کړی او تحریض کړی دی چه له مکاتبانو سره مساعدت او معاونت وکړی اوخپل خیراو خیراتونه ورکړی ترڅوچه هغوی یـی دخپل حریت داتمام او اکمال په لارکښې ولگوی لکه چه قرآن کریم فرمایـی .

« والذین یبتغون الکتاب مما ملکت ایما نکم فکاتبوهم ان علمتم فیهم خیراً، وآتوهم من‌مال الله الذی اتاکم» یعنی او هغه کسان چه ستاسی‌دلاسونو مملوك اوغلامان دی اوغواړی چه دکـتابت دعقد په اساس ځانونه‌آزادکاندی نوتاسی دهغوی دغه غوښتنې ومنی‌ه که‌چیرته دهغوی مصالحو دغه ته اضا کوله

اوهغوی‌ته‌دخدای هغه‌مال‌ورکړیء چه‌تاسی‌ته‌یی درکړی دی . یعنی‌مالی‌کومک ورسره وکړیء‌ترڅ‌وچه دهغه په‌بدل‌خپلی آزادیء واخلی .

حتی‌اسلام په‌دې هم‌اکتفا کړی‌نه‌ده بلکه‌ددوات دبودجی او عوایدو یوجزئی‌هم ددوی دپاره تخصیص کړی‌دی لکه‌چه‌دزکاتونو په‌بحث کښی اشاره ورته وشوه چه‌دغه‌ډول غلامان دزکات چه‌ددولتی عوایدو یوه‌چشمه گڼل کیږی مصارف‌او مورد وگڼل شول .

دقرآن دغه‌آیت ظاهراً په‌دی‌دلالت کوی چه‌بادارته روانه ده چه‌دغلام له دغه‌پیشنهاد (کتابت) سره مخالفت‌وکړی اوویی‌نه‌منی. اوهروخت چه‌غلام‌رغبت پیداکړی چه‌ږپیسو په‌مقابل‌کښی ځان‌خلاص‌کاندی حق‌لری چه‌دغه‌کار وکړې اوبادار مکلف‌دی چه‌مساعدت ورسره وکړی اوپیشنهاد یی‌ومنی .

«ابن‌جریج‌له‌عطاء ابن ابی رباح نه‌پوښتنه وکړه چه که‌زما مریی له‌ما نه خپل‌کتابت وغواړی آیاپرما واجبه ده چه‌مکاتب‌یی کړم اوکه‌نه ؟ هغه ورته وویل چه‌زه خویی‌ددغه یورتنی آیت په‌حکم فرض او واجب گڼم » اوکه دغه مکاتب‌وینځه‌وه نوددغه عقدپه‌سبب ددې‌اولاد هم‌حر پیداکیږی که‌څه‌هم د مریی له‌اصله‌اوله‌گنډی‌وې او په‌مجرد ددې چه دغی ښځی‌مثلې پیسې خپل سیدته و رسولې ولدیی هم‌ب‌ی له عوض‌نه آزا دیږی . خواه بادا ږپه دې راضی او سی اوکه نه .

له‌دی‌نه علاوه داسلام دین په‌ډیرو هغوگناو اوخطاو کښی دغلام آزادول کفاره گرځولې ده چه‌ډیری پیښیږی . دغلام آزادول یی‌دقتل په‌ځینو انواعو کښی کفاره گرځولې ده چه‌له‌هغی جملې څخه یو هم د خطا قتل‌دی لکه چه قرآن کریم فرمایی «ومن‌قتل مؤمناً خطاءً فتحریر رقبه‌مؤمنة» یعنی چاچه څوك په‌خطا اونا بازه کښې ووژه نوبایده دی‌چه یومؤمن‌غلام اولا وینځه آزا ده کړی .

همدارنگه یی‌دقسم په‌کفاره‌کښی راوړی دی‌لکه چه فرمایی: «فکفارته اطعام عشرة مساکین من‌اوسط ماتطعمون اهلیکم اوکسوتهم اوتحریر رقبة » یعنی دلوړې کفاره داده‌چه‌لسوتنو مسکینانوته هغه‌متوسط خواړه ورکړیء چه

تاسو یې خپلو اولادو نوته ورکوئ اولاسو تنوته چامې ورکړئ اولا یوغلام آزاد کـړئ .

همدارنگه دظهار (چه مخ کښې یې بحث تیرشو) په کفاره کښې یې هم دغلام آزا دول لازم کړی دی لکه چه قرآن کریم فرمایی . «والذین یظاهرون من نسائهم ثم یعودون لماقالو افتحریر رقبة من قبل ان یتماسا» یعنی هغه کسان چه له خپلو ښځوسره ظهارکوی اوورته وایی چه ته په ماباندې دمور شاولاخیته یی او بیا له خپلی خبری گرځی نوباید پخواله هغې چه له خپلې ښځې سره وصلت وکړی یو غلام آزاد کاندی . او داسلام روښانه شریعت دا مقرره کړی ده چه په هغه چاباندی چه دغلام آزادول لازم شول او غلام یې نه درلود نو بایده دی چه په پیسو یې واخلی او آزادیی کړی .

اوله دی سره سره داسلام دین دخلکو په زړونو کښې دامحبوبه کړی ده چه دغلامانو په آزا دولو کښې کوشش وکړی او په دغه نیك کاریې ډیر اجرونه او ثوابونه مرتب کړی دی .

اودایی دالهی قوب ډیره مؤثره وسیله بللی اوخپل پیروان یې دغه کارته ترغیب کړی دی. حضرت پیغمبر (ص) به ډیره ښه کار دعظمت او لوړوالی دښودلو دپاره دغلام آزادو لـدمثال په توگه را وړل اوویل به یې چه «چاچه دغه کاروکړ لکه چه یو غلام یې آزاد کړی اوسی» اولا به یې فرمایل چه «دده ثواب دخدای په نزد دومره ډیردی لکه چاچه غلام آزاد کړی اوسی» .

له دغو ټولو مباحثونه زمونږ هغه خبره ثابته شوه چه ویلی موؤ چه اسلام درق اومریی توب جاری پرې ایښی نه دی مگر په هغه توگه چه په تدریج سره له منځه لاړشی او کمبله یې ټوله شی ، په داسې ترتیب چه له یوی خوایی درق اومریی توب منافذ او مجاری تنګ کړی اوله بلی خوایی دعتق اوحریت منافذ او لارې دومره پراخه کړې دی چه په هسې پلموهم آزادېږی اومریی توب له منځه وړی . او په دې ترتیب غلامی هغی ویالې ته ورته ده چه ډیر ښاخونه ترې بیل شوی وی او اوبه یې له سربندنه قطع کړی شوی اوسی . اودغسې ویالې ددی وړدی چه زروچې شی اوخاځکی اوبه پکښې ونه لیدل شی .

قرآن کریم ځای پرځای له‌مریانو سره دښه‌سلوك کولو توصیه کړی او خپل پیروانی‌ی ترغیب کړی‌دی‌چه‌له‌خپلو مریانوسره په‌مروت اومیړانه‌معامله وکړی او د خپلو احسانونو موردیی وګرځوی لکه چه یو ځای فرمایی . «واعبدوا الله و لاتشرکوا به‌شیأو بالوالدین احسانا وبذی القربی والیتامی والمساکین والجارذی‌القربی والجارالجنب والصاحب بالجنب وابن السبیل وماملکت ایمانکم ، ان‌الله لایحب من‌کان مختالاً فخوراً» یعنی او دخدای عبادت وکړی‌ء اوبل‌هیڅ شی مه‌ورسره شریکوی‌ء اوله‌خپلو میندو او پلرونو سره ښه‌کوی‌ء اوهمدغه ښی‌ګڼه دخپلوانو ، یتیمانو مسکینانو ، دنژدو اولرو ګاونډیانو ، دخپلو ملګرو ، مسافرو اوخپلو مریانو په‌مورد کښی‌عملی‌کړی‌ء بی‌شکه چه‌پاك‌خدای متکبر اوخپل‌ځان ستایونکی خلك‌نه‌خوښوی .له(ماملکت ایمانکم) څخه دټولو مفسرینو په‌اتفاق غلامان اووینځی مراددی.اوګوری‌ء ! چه‌پاك خدای له غلامانو سره احسان کول او ښه کول د خپل عبادت‌اود مور او پلارداحسان‌کولوپه‌څنګ‌کښی راووړ اودا دد ې دلیل‌دی چه‌اسلام غوښته چه‌دمریانو انسانی کرامت هم‌محفوظ پاتی شی اوورو ورو آزادشی . حضرت پیغمبر (ص) فرمایلی دی چه «اتقوا الله فی ماملکت ایمانکم» یعنی دخپلو غلامانو په‌مورد کښی له‌خدایه ووېرېږی‌ء اوښه رویه ورسره وکړی‌ء . بل ځای فرمایی « لقد اوصانی جبریل بالرفق بالرقیق حتی ظننت ان الناس لا تستعبد و لا تستخدم » یعنی ما ته به جبرئیل (ع) تل په غلامانوباندی دنرمی اومهربانی دومره توصیه‌کوله چه ما ګمان وکړ چه یو انسان‌هم‌داحق‌نلری چه بل‌انسان غلام ونیسی‌او ولایی استخدام کړی .

بل ځای فرمایی « اخوانکم خولکم جعلهم الله تحت ایدیکم، فمن‌کان اخوه تحت یده فلیطعمه ممایأکل ولیلبسه ممایلبس» یعنی ستاسی‌خدمت‌ګاران اوغلامان ستاسی وروڼه دی چه پاك خدای‌ستاسی له لاس لاندی‌کړی‌دی نودچا چه کوم ورور دهغه له لاس لاندی وی باید هغه خواړه ورکړی چه‌خپله یی خوری اوهغسی جامی ورکړی چه خپله یی اغوندی .

کوم وخت چه حضرت عمر(رض) له خپل غلام سره دبیت المقدس د تسلیمېدو دپاره چه دابو عبیدة ابن الجراح له خوا محاصره شوی ؤ هغې خواته وخوځید نوله دواړو سره یوه اوښه وه چه په وار به پرې سپرېدل تر څوچه بیت المقدس ته نـژدې شول او وارهم دغلام ؤ . غلام هرڅه وکړه چه دی له خپل وار نه تېر دی او باید دلته خلیفه په اوښه سپورشی خوحضرت عمر (رض) ونه منله او هغه یـی په اوښه سپور کړ اودی یې له جلولاندې روان او په همدی وضع ښار تـه ورننوتل .

یوه ورځ حضرت عمر(رض) په مکه کښې تېرېده گوری چه غلامان ولاړ دی او باداران یـی ډوډی خوری. ددغې وضع په لیدوپه قارشو اوبادارانوته یـی سخت وویل چه « د هغه قوم عاقبت به څه وی چه خپل ځانونه په خپلو خدمتگارانو پورته گڼی اواستېداد ورسره کوی؟» نوبیا یـی خادمان راوغوښتل او یو ځای یـی له بادارانو سره په یوه دسترخوان کښېنول اوگډه یـی ډوډی ورسره وخوړه .

اسلام ټول باداران منع کړی دی چه خپلوغلامانوته ضرر ورسوی اولایـې مثله کاندی حتی ځینې مذاهب پدې عقیده دی چه گوم غلام ته چه دبادار لخوا اذیت و رسېږی هغه پرې آزادېږی یعنی حکومت حق لری چه دهغه په حریت حکم وکړی او دبادار لاس د هغه له غاړې وباسی .

له عبدالله ابن عمر(رض) نه روایت شوی دی چه وایـی ما له حضرت پیغمبر (ص) نه اورېدلی دی چه فرمایل به یـی « من لطم مملوکه او ضربـه فکفارته عتقه» یعنی چا چه خپل مر یـی په څپېړ اولا په بل څه وواهه نو کـفاره یـې داده چه هغه آزاد کاندی .

څنگه چه اسلام مریـی له خپل بادارنه حمایه کوی همدارنگه یـی له نورو هم حمایه کوی. اسلام دامقرره کړې ده چه که په کوم مریـی بانـدې له خپل بادار نه پرته چا ظلم اوتېری وکړ باید متجاوز ته هغه سزاور کړه شی چه په اصیل یـې تېری کړی اوسی. حتی دقتل په باره کښی هم دغه حکم دی چه په

غلام باندې اصیل قصاصاوشی ابوحنیفه (رح) وایي چه اصیل په غلام قصاصېږي او په دې آیت استدلال کوي « وکتبنا علیهم فیها ان النفس بالنفس » یعني او مونږ په تورات کښې په بني اسرائیلو باندې مقرره کړې وه چه نفس په نفس وژل کېږي خواه دغه نفس نروي اوکه ښځه . غلام وي اوکه اصیل .

داسلام شریعت مریان له خپلو ټولو مدني حقوقو محروم کړي نه دي لکه چه نورو ادیانو محروم کړي دي .

بلکه دهغو په انسانیت یې اعتراف کړی او په ډېرو مدني حقوقو ورته قایل دی. لدې جملې څخه اسلام مریې ته په کورني قایل دی او حق یې ورکړی دی چه کورني اوفامیل تاسیس کاندی. مریانو ته یې رواکړې ده چه له وینځو او اصیلو ښځو سره واده وکړي او وینځو ته یې هم روا کړې ده چه له مریانو او اصیلانو سره واده وکړي اوخپلې کورني تاسیس کاندي اوپه هغو شرایطو واده سره وکاندي لکه چه احرار یې سره کوي . په داسې حال کښې چه له اسلام نه پخواني شرایع قطعاً په دغه حق مریانو اووینځو ته قایل نه وو ، نه یې د ازدواج حق ورکاوو اونه یې دقانوني کورني دتشکیل حق .

اود مریانو اووینځو ترمنځ وصلت به د ازدواج په اساس نه وو بلکه دغه کار به دهغوی دبادارانو په مصلحت کیده اومنظور به تری دډېرو غلامانو توالدوو لکه چه دنورو حیواناتو په توالد اوتناسل کښې منظور نظروي . پخوانیو شرایعو به احرارو ته دوینځو دنکاح اجازه نه ورکوله اونه به یې اصیلې ښځې ته اجازه ورکوله چه له مریي سره نکاح وکړي حتی دغو شرایعو به هغې اصیلې ښځې ته سخته سزا چه اعدام ته به هم منجره کیده ورکوله چه له مریي سره به یې نکاح کړې وه . داهم دمریانو په حال باندې داسلام ددین دخاصې توجه لرلو دلیل دی چه غلام یې دښځې دطلاق واکدار گرځولی دی نه دهغه بادار . لکه چه په نورو شرایعو کښې به دطلاق حق دبادار وو . ابن ماجه له ابن عباس څخه په خپل سنن کښې روایت کړی دی چه یوه ورځ حضرت پیغمبر (ص) ته یو سړی راغی او ورته

ویی‌ویل چه «ماته می‌خپل بادار خپله‌وینځه په‌نکاح راکړه اواوس غواړی چه زمونږ ترمنځ تفریق راولی اوراځخه بېله‌یی کړی» حضرت‌رسول (ص) ددغې خبری په‌اوریدو سره‌منبرته وخوت اوویی ویل : «ای‌خلکو ! دهغه‌چا حال‌او عاقبت به‌څه‌وی چه‌خپله وینځه خپل غلام‌ته په‌نکاح ور کوی او بیایی تـرې بیلوی ؟ حال‌دادی‌چه‌طلاق دهغه‌چاحق‌دی چه‌دنکاح‌عقد په‌غاړه‌لری» یعنی‌دطلاق حق دمیړه‌دی نه‌دمولا اوبادار .

«الحمدلله الذی هدانالهذا وماکنا لنهتدی لولا ان‌هدانالله» یعنـی‌ثنا او ستاینه هغه‌خدای لره ده‌چه مونږ ته‌یی ددغه‌دین‌هدایت‌په‌برخه‌کړی‌دی‌او که‌دده هدایت نه‌وای مونږ به‌دغه دین ته رسیدلی نه وای .



# سمون لیك

| مخ | کربنه | غلط | سم |
|---|---|---|---|
| ٤ | ٢٥ | حدنەد | حد نەدي |
| « | « | وکری | وکږ |
| ٦ | ٣ | هـ-هڅ | هر |
| ٨ | ٢٥ | لم‌یأتو | لم یأ توا |
| « | ٢٦ | اباربعته | باربعة |
| ١٠ | ١ | خوا | خو |
| ١١ | ٢١ | شاګردن | شاګردان |
| ١٢ | ١٥ | تي | ته |
| ١٤ | ٣٢ | سو | سود |
| ١٨ | ١٥ | دوی | ددوی |
| ٢٠ | ٦ | ډلو | ډول |
| ٢٤ | ١٤ | مؤلفته | مؤلفة |
| ٣١ | ١٥ | واولئك | اولئك |
| ٣٣ | ٤ | وابن‌اسبیل | وابن السبیل |
| « | ١١ | « | « |
| ٣٢ | ٩ | لم بصبها | لم یصبها |
| « | ١١ | په ولوړه | په یوه لوړه |
| « | ١٩ | مکر | مګر |
| ٣٩ | ٤ | لااصیع | لا ا ضیـع |
| « | ١٦ | فرفائی | فرمائی |
| ٤٣ | ٨ | بعضی | بعض |
| ٥٥ | ١٧ | حاجز | عاجز |
| « | ١٨ | لادي | لاري |
| ٥٩ | ٨ | قانون نکاح | قانون دنکاح |

# سمون لیك

| مخ | کربنه | غلط | سم |
|---|---|---|---|
| ٦٢ | ١٠ | غر | غبز |
| ٦٤ | ٢٥ | حز ئی | جز ئی |
| ٦٥ | ١٤ | هیوا | هیواد |
| ٦٧ | ١٢ | امور | امورو |
| ، | ٣٦ | نوښتنګه | نوښتنګه |
| ٧٠ | ٢١ | االو | او |
| ٨٠ | ٦ | ان لابقیما | الان لا یقیما |
| ٨١ | ٢٦ | خدای | دخدای |
| ٨٤ | ٣ | نوروو | نورو |
| ٩٧ | ٢٧ | انزالله | انزل الله |
| ٩٨ | ٠١ | ودایمان | او دایمان |
| ١٠١ | ٧ | کبلې | کبله |
| ١٥٧ | ٢١ | رقبه | رقبة |



